# شریعت
ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ۷۰۰ ګڼه / پنجشنبه ۰٦ رمضان‌المبارک ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ۱٦ مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۰٦ مارچ ۲۰۲۵ میلادي





ډونالډ ټرمپ:
## له افغانستانه د امریکا وتنه شرموونکې او له بې‌وسۍ ډکه وه

د امریکا د متحده ایالتونو ولسمشر ډونالډ ټرمپ ویلي، چې له افغانستانه د وتلو ورځ شرموونکې، ویروونکې او له بې‌وسۍ ډکه وه.
نوموړي دغه څرګندونې پرون د کانګریس په خپله لومړۍ غونډه کې کړې دي. له هېواده د امریکایي اشغال تولېدنه نه یوازې د دوی نظامي ماتې او د افغان ملت بری و؛ بلکې د امریکا لپاره نړیوال شرم او د ستراتیژیک قوت ماتېدنه وه.
یاده دې شي چې د امریکا اوسمهالي ولسمشر غوښتي و چې افغانستان کې له دوی پاتې وسلې دې بېرته ورته ستنې شي؛ خو اسلامي امارت یادې وسلې غنیمت بللي او د هېواد خپلواکۍ ساتنې ته یې اړینې بللي دي.



مجاهد:
## جوماتونو ته برېښنا وړیا شوه

د اسلامي امارت د زعیم امیرالمؤمنین حفظه‌الله د فرمان په بنسټ د هېواد ټولو جوماتونو ته برېښنا وړیا شوه او لګښت نه ترې اخیستل کېږي. د اسلامي امارت ویاند مولوي ذبیح‌الله مجاهد په خپله اېکس پاڼه لیکلي، چې د جوماتونو د برېښنا لګښتونه معاف دي او اړوند اداري دې په راتلونکي کې د یادو لګښتونو د تادیې غوښتنه نه کوي. په اېکس کې ټینګار شوي، چې د دې لګښتونو دقیقه څارنه دې وشي؛ تر څو د جوماتونو برېښنا په نورو ځایونو کې مصرف نه شي.

## نړیوالو اعتراف کړی چې اقتصاد او بانکوالي دې له اسلامي امارت څخه زده‌کړای شي

د امر بالمعروف، نهي عن‌المنکر او شکایتونو اورېدلو وزارت نظامي مرستیال شیخ سعید احمد شهیدخیل ویلي، چې د نړۍ پرمختللو هېوادونو پر دې اعتراف کړی، چې اقتصاد او بانکولۍ دې له اسلامي امارت څخه زده‌کړل شي.
ښاغلي شهیدخیل پرون په کابل کې د نیالګیو ایښودلو ملي کمپاین د پرانیستې په مراسمو کې زیاته کړې، اسلامي امارت سربېره پر دې چې په اقتصادي بندیزونو کې دی؛ خو د افغانۍ ارزښت یې په ښه توګه ساتلی دی.
نظامي مرستیال دغه راز په دې ناسته کې د ښاروالۍ کړنو ته په اشارې سره ویلي، چې د اسلامي امارت مسئولینو په کمو امکاناتو لویې چارې ترسره کړې دي.



د هنر او فرهنګ معین:
## د بیرغ د سم کارولو لپاره باید پراخ عامه پوهاوی ترسره شي



**شریعت:** د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د مقام د لارښوونې او د هېواد د یو شمېر علمي شخصیتونو د سلا مشورو پر بنسټ پرون د هنر او فرهنګ د مرستیال مولوي عتیق الله عزیزي په مشرۍ د اسلامي امارت په رسمي بیرغ کې د کلمې طیبې د درناوي او په عامه ځایونو او نقلیه وسائطو کې د استعمال پر لارو چارو غونډه وشوه.
په غونډه کې د هنر او کلتور مرستیال مولوي عتیق الله عزیزي وویل: ((د اسلامي امارت په رسمي بیرغ کې د کلمه «طیبه» لیکل د دې بیرغ یوه ځانګړتیا ده چې د هېواد او اسلامي نظام د دیني او جهادي ...

۷مخ

## کمیته بین‌الوزارتی طرح ساخت مارکیت تجارتی در بلخ را تأیید کرد

معاونیت اقتصادی رئیس‌الوزرا می‌گوید، طرح ساخت مارکیت تجارتی در ولایت بلخ را مورد تأیید قرار داده است.
بربنیاد خبرنامه، این مارکیت تجارتی قرار است در زمین مربوط به وزارت ارشاد، حج و اوقاف از سوی سکتور خصوصی ساخته خواهد شد.
در این جلسه فیصله شده تا طرح یادشده جهت منظوری به کمیسیون اقتصادی ارائه شود.
همچنان در جلسه یادشده روی طرح صنعت گاز مایع پیشنهادشده از سوی سرمایه‌گذاران ایرانی ارائه شده است. این طرح به کمیته تخنیکی سپرده شده تا با پیشنهاد کنندگان آن بحث‌های همه‌جانبه انجام داده و گزارش خویش را ارائه دهند. گفتنی‌است که کمیته بین‌الوزارتی جهت فراهم‌سازی تسهیلات سکتور خصوصی با نهادهای امارتی تلاش می‌کند.



## کاپیسا کې د کور نړېدو له امله مرګ‌ژوبله اوښتې



د کاپیسا مسئولین وایي، د یاد ولایت په نجراب ولسوالۍ کې د یو کور د چت نړېدو په پېښه کې یو ماشوم مړ او درې کسان نور ټپیان شوي دي.
د کاپیسا د امنیې قوماندانۍ ویاند، عبدالفتاح فایز ویلي چې دا پېښه د نجراب ولسوالۍ په «دره غوث» سیمه کې شوې ده.
د مسئولینو په وینا چې د دغه کور بام د زیات ورښت له امله نړېدلی او په پېښه کې یو نهه کلن ماشوم ژوند بایللی دی.
د سرچینې د معلوماتو له مخې چې د پېښې ټپیان ټول د یوې کورنۍ غړي دي.
د کاپیسا د امنیې قوماندانۍ ویاند د دې پېښې لامل په یاد ولایت کې وروستي زیات ورښتونه بللي دي.
یاده دې شي چې په دې وروستیو کې ورښتونو د هېواد په یو شمېر ولایتونو کې د سرومال زیانونه اړولي دي.

## هرات کې د موټرو نړیوال ترمینل جوړېږي

**شریعت:** په هرات کې د ۲۲ میلیونه ډالرو په ارزښت د موټرو یو نړیوال ترمینل جوړېږي، چې نه یوازې د دغه ولایت، بلکې د ټول افغانستان اقتصادي پرمختګ ته نوې هیلې ټوکوي. د دې پروژې تمویل او مدیریت چارې د ټرانسپورټ وزارت له لوري خصوصي سکټور ته سپارل شوي دي. د هرات د والي ویاند مفتي یوسف شریعت ورځپاڼې ته په رالېږلو معلوماتو کې ویلي، چې د دغه ترمینل د لومړي فاز ...

۷مخ





سرمقاله

## د سوداګرۍ لورې او څو بدیلونه

نږدې دوې اونۍ وشوې چې پلي او باروړونکي موټرونه د تورخم د دروازې د پرانیستې په تمه دي؛ خو لا یې هم د خلاصون چندان اټکل نه کېږي.
ددې دروازې د بیاپرانیستې او د ستونزو د هوارې په موخه د ننګرهار ولایتي مسئولینو هم هلې ځلې وکړې او پر دې موضوع ګډې ناستې هم بې پایلې وې. دا خو هر چا ته څرګنده ده چې ګاونډي هېواد پخوا هم ترانزیټي، د پلیو او سپرو د تګ راتګ دروازې تل په ورو او حتی په نه‌توجیه کېدونکو بهانو تړلې.
د دواړو هېوادونو د سوداګرۍ ګډې خونې ویلي چې دې څو ورځو کې سوداګرو لسګونه میلیونه زیان لیدلی دی. د مالونو د ورستېدو او له منځه تلو سربېره د یادې لارې خلاصون ته زرګونه مسافر په تمه دي. دې مسافرو کې مېرمنې، کوچنیان، ناروغان او غمرخوړلي هم شته. د دواړو هېوادونو پولەساتي هم وخت ناوخت نښتي او اندېښنه شته چې ملکیان به د سر زیان ووینې.
محوري بحث دا دی چې انساني فطرت تل پر بدیل غور کوي او هغه وخت یې تنده خړوبېږي چې د ضایع شوې او یا سلب شوې پدیدې بدیل په لاس ورشي. په وچه کې د ښکېلتیا مسئله به پر ځای پرېږدو او له دې بې‌وسۍ نور هېوادونه هم کړېږي. پوښتنه دا ده چې موږ کې او زموږ خاوره کې ددې ظرفیت شته چې نړیواله سوداګرې راماته کړو او د منځنۍ اسیا په ګډون له جنوبي او ختیځې اسیا سره اړیکې ورغوو؟ د نورې نړۍ ملتونه ننګونو او چلېنجونو کې فرصتونه او ګټېویني او موږ ته چې الله تعالی نایابه خاوره او جیوپولیټیک موقعیت راکړی، حتمي ترې ګټه پورته کولی شو.
که وګورو، د منځنۍ اسیا نور هېوادونه له افغانستان سره د ګډو اړیکو او بیارغونې پوره پوره لېوالتیا ښیي او دوی اړ دي چې د افغانستان سره جیواکانامیکه ښکېلتیا ولري.

۷مخ

## د قوش تېپې کانال شاوخوا دې صنعتي او کرنیز او کمپلکسونه جوړ شي

د کرنې اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت په یوه خبرپاڼه کې ویلي چې د قوش تېپې کانال د نږدې ځمکو پر ګټورې او اغېزمنې کارونې او ګټې اخیستنې یې بحثونه کړي دي.
په دې تړاو جوړې شوې غونډه کې د کرنې او مالدارۍ وزارت سربېره د ښار او کور جوړولو وزارت، د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت، د مالیې وزارت سرپرستانو، د چارو اداري ریيس، د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت مرستیال برخه اخیستې وه. د کرنې اوبو لګولو او مالدارۍ سرپرست وزیر عطاالله عمري د قوش‌تېپې کانال د شاوخوا ځمکو د معقولې استفادې د طرحې د وړاندې کولو په تړاو د دغه وزارت له لوري په جوړه شوې غونډه کې ویلي، چې د دغه کانال په شاوخوا ځمکو کې باید منظمو صنعتي، کرنیزو او د مالدارۍ کمپلکسونو ته وده ورکړل شي.



# د اسلامي امارت او معاصرې نړۍ تر منځ اقتصادي تعامل

محمد قاسم



اســلامي امارت، چې د اسلامي شريعت د حاكميت پر بنسټ ولاړ دی، د اقتصــادي تعامــل پــه برخه کې د شــرعي اصولو رعايت ضروري ګڼي. د اســلامي اقتصاد اساسي بنسټونه، لکه عدالت، د احتکار مخنيوی، د ســود تحريم، د زکات، عشر او خــراج نظام، د حلالې ســوداګرۍ رواجــول او د بيت المال د عادلانه وېش تأمين، د اسلامي امارت د اقتصادي پاليسۍ مهم اصــول دي. د اقتصاد پياوړتيا لپاره د داخلي توليداتو پراخوالی، د کانونو اســتخراج، د ســوداګرۍ پراختيا او د پانګونې جلبولو ته ځانګړې پاملرنه شــوې. د اسلامي امارت اقتصادي تعامل د شريعت د لارښوونو پر اساس تنظيمېږي، څو د اسلامي اصولو پر بنياد د اقتصادي استقلال تضمين وشي.

اســلام د اقتصادي تعامل لپاره واضــح اصول لري. قرآن کريم فرمايي: تجارت حلال دی، خو سود حرام دی. (البقرة: ٢٧٥) اســلامي امارت د دې اصل په رڼا کې د غير سودي بانکدارۍ ترويج ته ژمن دی، څو اقتصادي فعاليتونه د اســلامي احکامو سره سم برابر شي. د سودي نظام له منځه وړل اقتصادي عدالت تأمينوي، ځکه چې ســود د بېوزلو اســتثمار ته لار هواروي. د رســول الله ﷺ دا حديــث، "لَا ضَرَرَ وَلَا ضِــرَارَ" (ابن ماجه: ٢٣٤١)، د اقتصادي تعاملاتو لپاره بنسټيز اصل دی. د اسلامي امارت اقتصادي پاليسۍ هڅه کوي چې دا اصل پلی کړي، څو اقتصادي نظام د عامو خلکو پر زيان ونه درېږي.

د اســلام مبارک دين د ســوداګرۍ پراختيا ته ځانګړې پاملرنه کړې، ځکه چې تجارت نه يوازې د فردي او ټولنيزې هوســاينې ســبب کېږي، بلکې د اقتصــادي ودې لپاره هم مهم رول لري. نبي کريم ﷺ فرمايي: رښتينی او امانتدار سوداګر به له انبياوو، صديقينو او شهيدانو سره وي." دا حديث د دې څرګندونه کوي چې که سوداګر په خپلو معاملو کې صداقت، امانت او شرعي احــکام رعايت کړي، نو نــه يوازې د دنيوي برکتونو مســتحق ګرځي، بلکې اخروي لوړ مقام ته هم رسېږي.

اسلامي شريعت ســوداګرۍ ته داسې اصول وضع کړي چې د ټولنې اقتصادي ثبات، عدل او شــفافيت يقيني کړي. له همدې امله، اســلامي امارت هڅه کوي چې ســوداګريزې اسانتياوې زياتې کړي، د پانګوالو، توليدونکو او کاروباريانو لپاره مناسب چاپېريال برابر کــړي او د اقتصادي فعاليتونو پر وړاندې شــته خنډونه لرې کړي. د اداري فســاد مخنيوی د شــفاف اقتصاد لپاره اړين دی، نو اســلامي امارت د احتــکار، درغلۍ، فريب او د مصنوعي نرخ لوړولو کلــک مخالفت کوي، ځکه چې دا عملونــه د بازار عدم ثبات، د عامو خلکــو اقتصادي زيان او د ټولنيز عدالت د کمزورۍ کېدو سبب ګرځي.

د اســلامي اقتصادي نظام بنســټ د عدل، امانت او عامه ګټو ته ترجيــح ورکول دي. اســلامي امارت د همدغــو اصولو پر بنســټ اقتصادي نظام چلوي، څو سوداګري يوازې د شتمنۍ د زياتوالي وســيله نه، بلکې د ټولنيزې ښېګڼې، عادلانه بازار او د اسلامي اخلاقو د ترويج يوه برخه وګرځي.

د اســلامي امارت اقتصادي تعامــل د نړيوالو اصولو خلاف نه دی، خو شــريعت ته ژمن پاتې کېدل د هرې معاملې اســاس جوړوي. که د اقتصادي اړيکو لپاره د اســلامي شريعت اصول رعايت شــي، نو دا تعاملات اسلامي مشروعيت لري. اسلامي امارت هڅه کوي چې له هغو هېوادونو ســره ســوداګري پراخه کړي چې د اســلامي اصولو درناوی کــوي او د افغان ملت له اقتصادي ځانبســاينې سره مرســته کوي. د تجارت پر مهال د عادلانه معاملې اصل، چې قــرآن کريم په دې ډول بيان کړی: "وأوفوا الكيل والميزان بالقســط" (الأنعام: ١٥٢)، بايد رعايت شي. د دې اصل پر اســاس اسلامي امارت شفافې سوداګريزو اړيکې پراخوي، څو له استثماري نظامونو ځان وساتي.

د اســلامي امارت لپاره د اقتصادي خپلواکــۍ اهميت له دې امله ســتر دی چې اسلام اقتصادي استثمار نه مني. د نبي کريم ﷺ دا حديث، "المســلمون شركاء في ثلاث: في الماء والكلأ والنار" (ابوداود: ٣٤٧٧)، د اقتصادي سياســتونو لپاره اساسي اصــل ګڼل کېږي. طبيعي زېرمې، لکــه کانونه، اوبه او انرژي، د ملت ګډ مــال ګڼل کېږي او بايد د عامــو خلکو د ګټې لپاره وکارول شــي. اســلامي امارت د دې اصل پر بنسټ د کانونو استخراج ته ځانګړې پاملرنه کړې، څو د نړيوالو استثمارګرو پر ځای داخلي ظرفيتونه وده ومومي او اقتصادي عايد د ملت فقر ختمولو ته وکارول شي.

د اسلامي امارت د اقتصادي تعامل يو مهم اصل د زکات، عشر او خراج نظام دی. الله تعالی فرمايي: زکات د اقتصادي عدالت وســيله ده، چې د ټولنې د غريبو خلکو مرســته کوي. (التوبة: ١٠٣) اسلامي امارت د زکات نظام ته جدي پاملرنه کوي، څو اقتصادي منابع د ټولنې د متوازن پرمختګ لپاره وکارول شي. د خراج سيستم، چې د اسلامي تاريخ د مالي سياست مهم اصل و، د بيت المال د پياوړتيا لپاره مهم دی. اســلامي امارت د دې اصل په رڼا کې د دولت د عوايدو سيســتم برابروي، څو د عامو خلکو پر اوږو د اضافي مالي فشار مخنيوی وشي.

د اســلامي امارت اقتصادي تعامل د نړيوالو اقتصادي بنديزونو له ستونزې ســره مخ دی، خو د اسلامي اقتصاد اصول دا اجازه نه ورکوي چې امارت خپل اســتقلال د نړيوالو د غوښتنو قرباني کړي. اســلامي امارت هڅــه کوي چې د متــوازن تجارت، د بديلو بازارونو موندلو او د ســيمه‌ييزو همکاريــو د پراخولو له لارې اقتصادي ثبات ته ورســېږي. د اسلامي امارت اصول دا ايجابوي چې اقتصادي پاليسۍ د بهرنيو ادارو د فشار پر بنسټ نه، بلکې د اسلامي اصولو مطابق تنظيم شي.

د اســلامي امارت د اقتصادي تعامل بله مهمه برخه د اسلامي هېوادونو ســره اړيکې دي. الله تعالــى فرمايي: "وتعاونوا على البر والتقوى" (المائدة: ٢). اســلامي هېوادونــه بايد يو له بله ســره د اقتصاد، تجارت او پانګونې په برخه کې مرسته وکړي. اســلامي امارت له اسلامي هېوادونو ســره اقتصادي تعامل ته ترجيح ورکوي، څو اقتصاد د اسلامي هېوادونو ترمنځ د متقابل ملاتــړ پر اســاس وده وکــړي. د امارت سياســت دا دی چې د اســلامي نړۍ اقتصادي اتحاد ته وده ورکــړي، څو د نړيوال استثمار مخه ونيول شي.

د اســلامي امارت اقتصادي تعامل بايد د اســلامي عدالت پر اساس وي. الله تعالى فرمايي: "إن الله يأمر بالعدل والإحسان" (النحل: ٩٠). اســلامي عدالت دا ايجابوي چې اقتصادي وده يوازې د يوه خاص قشــر لپاره نه، بلکــې د ټول ملت لپاره وي. د اســلامي امارت اقتصاد د عادلانه وېش پر بنسټ تنظيمېږي، څو د ټولنې بېوزله قشــر له اقتصــادي ودې څخه محروم پاتې نه شي.

د اسلامي امارت اقتصادي پاليسۍ د اسلامي احکامو پر بنسټ ولاړې دي. د اســلامي امارت مکلفيــت دا دی چې اقتصاد د اسلامي اصولو مطابق تنظيم کړي، نه د نړيوالو د فشار له مخې. اسلامي امارت د معاصرې نړۍ اقتصادي تعامل ته پر اسلامي اصولو ولاړ بديل وړاندې کوي. که اقتصادي تعامل د اســلامي شريعت مطابق تنظيم شــي، نو نه يوازې اقتصادي استقلال به خوندي شي، بلکې ټولنه به له فقر، استثمار او اقتصادي ناورين څخه خلاصه شي. د اسلامي امارت اقتصادي سياستونه د دې هدف لپاره ترتيب شــوي چې افغانســتان د اسلامي اقتصاد يو عملي ماډل وګرځي، چې له يوې خــوا داخلي اقتصاد پياوړی کړي او لــه بلې خوا نړيوال اقتصاد ته د اســلامي اصولو پر بنا حللارې وړاندې کړي.

# روژه د برکت او رحمتونو میاشت

مولوي ضياءالحق حسان - څلورمه برخه

**د روژې تاريخ :**

روژه د حضرت ادم عليه الســلام له زمانې څخه را پيل شوې، يو روايت کې راځي چې د آدم عليه السلام په وخت کې ايام البيض يعنې د هرې مياشتې ١٣_ ١٤ او ١٥ روژې فرض وې، يهودانو او نصرانيانــو هم روژې نيولې، د هندوانو د دهرم بده په مذهب کې هم روژه د مذهب يو رکن دی او په بادســيانو کې هم روژه غوره عبادت بلل کېږي، لنــډه داچې د دنيا په هر مذهب کې د روژې فضيلت او اهميت پيدا کېږي.

مسائل رفعت قاسمي ص ٣٥

**روژه څه وخت فرض شوه:**

نبي کريم ﷺ وروســته له دې چې په پيغمبرۍ مبعوث شــو ١٣ کاله يې خلکو ته په خپل ښار مکه معظمه کې د الله دين بيانولو او دعــوت يې کولو او تر دې وخت پورې بغير له ايمان راوړلو او بت‌پرستۍ پرېښودلو، د شريعت بل حکم نه و نازل شوی.

بيــا کرار، کرار، د الله ﷻ د دين د حکمونه راتلل پيل شــول، د اسلام په ارکانو کې لومړی لمونځ فرض شو، بيا وروسته چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم له مکې مکرمې څخه مدينې منورې ته هجرت وکړ، نو هلته د الله ﷻ د دين ډېر حکمونه نازل شول، چــې له جملې يې روژه هم ده، څرنګــه چې د روژې تکليف په نفس باندې ســخت او دروند و، نو ځکه ورته د فرضيت په ليکه کې درېيم ځای ورکړل شــو، د اسلام په ارکانو کې لومړی لمونځ چــې يو څه نرم دی بيا زکواة او پــه درېيم وار کې يې روژه فرض ګرځولې ده، په اول کې د عاشــورا يا د محرم الحرام د مياشتې په لسمه نېټه روژه فرض وه، کله چې د رمضان روژه فرض شوه نو د عاشورا د روژې فرضيت ختم شو، د روژې د فرضيت په پيل کې دومره اسانتيا موجوده وه چې که چا غوښتي وای چې روژه ونيسي نو روژه به يې نيوله او که چا غوښتي وای چې د روژې په بدل کې يوه مســکين ته يوه ورځ خوراک ورکړي نو همدارنګه يې کولای شول، لوی رب د بنده ګانو د کمزورۍ په نظر کې نيولو سره کرار کرار د روژې نيولو عادت وفرمايلو، کله چې څه زمانه تېره شــوه او خلک د روژې نيولو سره يو څه عادت شول، نو له مريضانو او عذر لرونکو خلکو بغير له نورو څخه دغه اختيار واخيســتل شو او له هجرت څخه يو نيم کال وروســته پــه دوهم هجري کال د شعبان مياشتې په لسمه مدينه منوره کې د روژې د فرضيت حکم را نازل شو، د رمضان د مياشتې د روژې فرضيت له کتاب، سنت او اجماع د امت ټولو ثابت دی.



فقه علي المذاهب الاربعه ج ١ ص ٨٧٥

زاد المعاد ج ١ ص ١٦٠

نور بيا ...

# غرب زده ګان او د اخلاقو بحث!

قاري عبدالستار سعيد

افغانستان ته چې امنيت راغلی، ورسره له نړۍ نه سيلانيان هم رامات شــوي دي. په دې وروســتيو کې غرب زده ګانو غوغا جوړه کړې چې افغانســتان ته د سيلاني په نوم تللې يوه ښځه په حقيقت کې بدکرداره ده. دوی بيــا همدا خبره موږ ته راپيغوروي او اســلامي نظام ملامت بولي.دوی ته به ووايو چې د دغســې مواردو مخنيوی ځکه ســخت دی، چې ټول غرب د فحشــاء، بد اخلاقۍ او پستۍ بدبويه ډنډ دی. يوازې همدا ســيلانۍ نه بلکې د هر غربي او غرب زده ســوابق که را وپلټې نو يو لوی فحــاش او بدکرداره به راووځي. دا ممکنه نه ده چې هيــواد ته د ټولو غرب وهليو په راتګ بنديــز ولګېږي او که نه لګېږي دغســې موارد خامخا پېښيدلای شــي.دا تېر شل کاله چې افغانستان کې په لکونو غربي پوځيانــو، قراردادیانو او ملکي کارکوونکو وظيفې ترســره کولې، دا هر يو د غربي فرهنــګ مولود و. هغه فرهنګ چې يو ځوان او پيغله خپل د مکلفيت ژوند په نکاح نه بلکې په سر ابله توب پيلوي. د اوونۍ په پای کــې نايټ کلب ته ځي، د کال رخصتۍ بايد د فحشا په بيچونو او کابارو کې تېرې کړي. هغه فرهنګ چې د آزادي او حقوق بشــر ته د احترام له ټولو لوړ معيار يې په همجنسبازۍ باور دی، هغــه بدمرغه خصلت چې حتــی د ځنګله په خنځيرانو کې هم نشــته.که غربيان پرېږدو او راشو خپلو غرب زده ګانو ته، دوی بيا کوم داســې ســپېڅلي مؤمنان دي چې پر لمن يې لمونځ کېږي. تېر شل کاله د افغانانو ياد دي چې پنجشــنبه به شــوه د جمهوريت وزيرانو او رئيسانو به مخ په دوشنبه، هند، دوبۍ او استنابول هی کړل. تر اوسه د جمهوريت په لوړپوړو پسې د هوايي شرکتونو د سفري ټکټونو قرضونه پاتې دي. ته به وايې دوی دا سفرونه د عمرې او حج په نيت کول. خو ټولو به ځانونه د هند، دوشــنبې او اروپا د ســمندر غاړو خرمستيو ته رسول. سبا به کوم د جمهوريت ټامي ېبرته هيواد ته راغلی وي او نورو به د فحشــاوو پر پړي پسې را ايســتلې وي، آيا بيا به هم موږ ملامت يو!؟اصلي خبره دا ده چې ټــول غرب په همدې مردارۍ ککړ دی.که راشــو جدي بحث ته، نو لکه څنګه چې د شرق ( اسلامي نړۍ) فکر او فرهنګ د پيغمبرانو عليهم السلام په تعليماتو ولاړ دی، د غرب فکر



او اخلاقي نظام د فيلسوفانو په نظرياتو تکيه دی. د فيلسوفانو د کرکټر او اخلاقو په اړه يو ليکل شــوی کتاب Philosophers Behaving Badly يــا (بدکار فيلســوفان) که مطالعه کړئ، غونــي به مو ځېږه شــي او د غربي فکر پســتي به د لمر غوندې درته روښــانه شي. مثلا د غربي فکر او فلســفې يو مهم ســرلاری ژان ژاک روســو دی، هغه چې په لومړي ځل يې له دين ســره د حکومت او سياســت تړاو نفی کړ او ويې ويل د حکومت او دولت منشــأ ديني نه بلکې انســاني ده او د (اجتماعي قرارداد) په نتيجه کې رامنځته شــوی.د غربي فلسفې د دغه ســرلاري په اړه ياد کتاب ليکلي چــې نومورړی له پرديو خاوند لرونکو ښځو سره نامشروع اړيکې درلودې، له هغو به يې چې حرامي اولادونه وزيږېدل هغه به يې پالنځايونو ته ســپارل. له محرماتو سره د دې فيلسوف د ناروا اړيکو په اړه داسې څه په کې ليکل شوي چې زما قلــم يې له ليکلو پناه غواړي. د کتاب په اســتناد هغه چې کله په ونيز کې د فرانســې په سفارت کې منشي و، او د کار حق الزحمه يې پاتې وه، د فرانسې ســفير ورته د معاش په ځای د فحشاء زمينه برابره کړې وه.د کتاب په اســتناد د غربي فکر او فرهنګ دغه ســرلاري په خپلو بداخلاقيــو هېڅ باک نه کاوه او په وياړ به يې ويل چې دا اخلاق نوي غربي تمدن او ماډرنيزم ورباندې تحميل کړي او دی په کې معذور دی.د ژان ژاک روســو يادونه هســې د بېلګې لپاره وشوه، کتاب کې د غرب د نورو فکري ســرلارو په اړه هم داسې څه ليکل شوي چې قلم يې په ليکلو شرمېږي.الغرض!غرب زده ګانو ته دا خبره په غوږ ورړږدو چــې په هر څه کې غږېږئ، خو لطفاً د اخلاقو بحث ته مه ځئ، چې په کې خرابېږئ.

# نقش بالقوه توسعه خط آهن در تقویت رشد اقتصادی افغانستان و منطقه

احمد ضیا سروری - بخش دوم

### مزایای تجمعی

حمل و نقل ریلی یکی از بهترین روش های سفر از نظر محیط زیستی میباشد، چون در مقایسه با سایر روش ها، از نظر مصرف انرژی و پایداری، مزایای چشمگیری دارد. طبق مطالعات کارشناسان این امور، بهره وری انرژی در حمل و نقل ریلی دو تا پنج برابر کار آمدتر از سایر شیوه های حمل و نقل است و میزان انتشار دی اکسید کربن را به حد اقل می رساند. نتایج این تحقیق نشان می دهد که گسترش شبکه های ریلی باعث افزایش مزایای اقتصادی شده و مزایای تجمعی قابل توجهی به همراه خواهد داشت. رشد نا متوازن اقتصادی در مناطق مختلف با بهره وری بالای سیستم حمل و نقل و افزایش تعاملات بین مناطق کاهش می یابد، که در نهایت، منجر به افزایش فعالیت های اقتصادی خواهد شد. در شهری که از منابع طبیعی غنی برخوردار است، یک سیستم حمل و نقل مدرن و کار آمد می تواند رشد اقتصادی را تسریع کند، چون حمل و نقل ریلی به عنوان مقرون به صرفه ترین روش جابه جایی مسافران و کالاها شناخته می شود. بنابراین، افغانستان از جمله کشور های است محیط فوق العاده مساعد برای بهره وری این صنعت را دارد. اگرچه این دیدگاه ممکن است وابستگی بیش از حد بین حمل و نقل و رشد اقتصادی را نشان دهد، اما با توجه به شرایط افغانستان و نقش اهداف توسعه پایدار، اتصال به شبکه های تولید منطقه ای و توسعه حمل ونقل شهری مدرن، از جمله پیوند ریلی بین شهرها، در زمینه توسعه اقتصادی ضروری به نظر می رسد.

### تأمین مالی و سرمایه گذاری در حمل و نقل ریلی

گراهام یکی از کارشناسان امور اقتصادی استدلال می‌کند، که اگر حمل ونقل ریلی مزایای اقتصادی قابل توجهی برای سرمایه‌گذاران و صاحبان املاک در مسیر خطوط ریلی داشته باشد، منطقی خواهد بود که این گروه‌ها در تأمین مالی توسعه زیرساخت های ریلی مشارکت نمایند. از آنجا که احداث خطوط راه آهن سرمایه‌گذاری پرهزینه و بلند مدتی است، دولت ها به تنهایی قادر به تأمین منابع مالی مورد نیاز برای توسعه این بخش نخواهند بود. به عنوان مثال، شبکه راه آهن بریتانیا در ابتدا توسط شرکت های خصوصی مرتبط با صنایع معدنی، فولاد و تولیدی توسعه یافت و سپس در سال ۱۹٤۸ از طریق ادغام چهار شرکت بزرگ ملی سازی شد. امروزه، برای توسعه خطوط ریلی نیاز به جذب سرمایه گذاری خارجی از طریق مدل های مانند مشارکت عمومی و خصوصی یا روش ساخت، بهره برداری و انتقال احساس می شود. همان طور که رادوپولو یکی دیگر از کارشناسان این حوزه می گوید، دولت ها باید فعالیت های اقتصادی را در مناطقی که به حمل ونقل ریلی وابسته اند، تشویق نمایند. در نتیجه، سرمایه گذاران اهمیت این بخش را درک کرده و به توسعه زیرساخت های آن سرمایه‌گذاری خواهند کرد.



### تجزیه و تحلیل هزینه، فایده در توسعه حمل ونقل ریلی

همچنان در این بررسی روی سیاست های عمومی نیز تمرکز خواهیم داشت. کرامپتون در مطالعه ای بر شهرهای لوزان و سن دیگو اذعان داشت که احداث سیستم های ریلی سبک، توسعه شهری را تسریع کرده و باعث ایجاد مسکن جدید، دفاتر اداری و مراکز خرید شده است. بر این اساس، از این نظریه چنین استنباط می شود، که یک شبکه راه آهن مدرن می تواند فرصت های شغلی را در افغانستان ایجاد کرده و حمل و نقل مقرون به صرفه را فراهم آورد که در نهایت منجر به رشد اقتصادی خواهد شد. همچنان خطوط ریلی نقش مهمی در گسترش شهرک سازی و رشد بخش زراعتی و تجاری دارد، به خصوص در کشورهایی که اقتصاد آنها همانند افغانستان متکی به امور زراعتی است. از این رو، این مقاله عواملی را بررسی نموده است که در تحول ساختار اقتصادی افغانستان نقش دارند.

### ایجاد یکپارچگی در بازار

بوگارت و چودری یکی دیگر از متخصصین امور خط ریلی استدلال می‌کنند، که سیستم راه آهن مهم ترین توسعه زیربنای در هند بین سال‌های ۱۸۵۰ تا ۱۹٤۷ بوده است. از نظر اقتصادی، راه آهن نقش عمده ای در یکپارچگی بازار ها و افزایش تجارت ایفا کرده است. این نویسنده تأثیر راه آهن بر اقتصاد گسترده تر را با تمرکز بر دو موضوع اصلی بررسی نموده است: نخست، این‌که آیا راه آهن باعث افزایش یکپارچگی بازار و همگرایی قیمتی شده است؟ و دوم، آیا راه آهن به طور قابل توجهی سبب افزایش درآمد خانوار ها شده است؟ براساس تحقیق آنها، راه آهن موجب رشد اقتصادی در هند شده و تأثیر حمل ونقل ریلی را بر همگرایی قیمت های داخلی و یکپارچگی بازار داخلی شناسایی کرده است. نتایج این مطالعات نشان داد که قیمت محصولات زراعتی در مناطقی که دارای راه آهن بودند، نسبت به مناطقی که فاقد این زیر ساخت بودند، کمتر بوده است. علاوه بر این، اندرابی و کول واین در سال ۲۰۱۰ با استفاده از تحلیل رگرسیون، نتایج قیمت بودن گندم و برنج را در شهر های مهم هند بررسی نمودند، تا تأثیر راه آهن بر یکپارچگی بازار را ارزیابی کنند. اگرچه وجود سیستم راه آهن باعث افزایش یکپارچگی بازار و درآمد ملی شد، اما می توانست نقش بیشتری در توسعه اقتصادی هند ایفا کند. این نویسندگان یاد آور می شوند که اطلاعات مورد بررسی در این تحقیق مربوط به ایالت های داخلی هند بوده و تأثیر صادرات، دسترسی به بازار های منطقه ای و جهانی را در نظر نگرفته است. ویژگی های ارتباطات زیر منطقه ای و جهانی، از جمله تأثیر راه آهن بر واردات و صادرات، در مواجهه با چالش های افغانستان برای پیوند دادن اقتصادی و تلاش این کشور برای جهش توسعه ای بسیار مهم هستند. همان‌گونه که در دهمین اجلاس راه آهن و مترو در سال ۲۰۱٤ مطرح شد، زیر ساخت های ریلی نقش اساسی در دستیابی به رشد اقتصادی ایفا می‌کنند. بر اساس این گزارش، فعالیت های راه آهن نه تنها خود می توانند درآمد زایی کنند، بلکه موجب ایجاد هم افزایی با سایر صنایع مانند گردشگری، زراعتی و معدن نیز می شوند. راه آهن می تواند توسعه محلی را از طریق فراهم سازی دسترسی به مردم، اطلاعات و فرصت های شغلی تسهیل کند. مدل های مشابهی برای توسعه شبکه ریلی در ایالات متحده و بریتانیا در دوران انقلاب صنعتی به‌کار گرفته شد. این کنفرانس همچنان تأکید کرد، که مردم عموماً حمل و نقل ریلی را به دلیل اجتناب از ترافیک و کاهش زمان سفر ترجیح می دهند. در نتیجه، مشارکت های عمومی، خصوصی تصمیم گرفتند، تا سیستم راه آهن را در این منطقه توسعه دهند، چون این امر دارای مزایای بالقوه اقتصادی است. در نتیجه، این مقاله تأثیر حمل و نقل ریلی را بر توسعه اقتصادی منطقه ای افغانستان و تأثیر آن بر تغییر سطح زندگی و کیفیت زندگی مورد بررسی قرار داده است. با وجود اینکه افغانستان از جمله کشور های میباشد، طی سال های متمادی جنگ های تحمیلی از مزایای این صنعت محروم بوده است، اما می تواند با برنامه های جدید که در این عرصه به راه انداخته است، بدون شک با رشد این صنعت حیاتی طی سال های نه چندان دور، به قله های برزگ توسعه و رشد اقتصادی در منطقه خواهد رسید.

# روژه او اخلاص

ژباړه او توضیح: مولوي نورالحق مظهري

پــه دې خاطر چې په روژه کــې عبادات ډېر تر ســره کېږي او په عباداتو کې هم اساســي شــی اخلاص دی نو راځئ اخلاص او د هغه ګټې و پېژنو!

اخــلاص دا دی چې ته یواځې او یواځې د اللــه تعالی عبادت او طاعت وکړې.

اخلاص دا دی چې خپل ټول کارونه د مخلوقاتو حتی د خپل ځان د ملاحظې څخه هم پاک کړې.

اخلاص دا دی چې ستا ظاهر او باطن سره یو ډول وي.

اخلاص دا دی چې د الله پاک په دوامداره ذکر او یاد باندې خلکو ته کتل او د هغو لحاظ کول هېر کړې.

فضیل رحمه الله فرمایلي : د خلکو لپاره د یو کار پرېښــودل ریاء ده، د خلکو لپاره د یو کار کول شــرک دی او د دواړو څخه د ځان ساتل اخلاص دی.

جینــد رحمه الله فرمایــي: اخلاص یو راز دی د اللــه او بنده تر مابین، ملائکه نه ده په خبره چې ویې لیکي، شیطان نه دی په خبر چې فاســد یې کړي او د انسان نفسي اشتیاق نه دی په خبر چې د ده څخه یې واړوي.

ســهل رحمه الله ته وویل سوه: پر نفس باندې څه شی ډېر سخت دی؟ ده ورته وویل: اخلاص. ځکه چې په اخلاص کې نفس هېڅ ونډه نه لري.

ځیني وایي: اخلاص دې ته ویل کېږي چې ته پر خپل عمل باندې بې له الله بل هېڅوک شــاهد ونه نیسي او بېله الله د هیڅا څخه د اجرت غوښتنه هم ونکړې.

مکحول رحمه الله ویلي : څوک چې څلوېښــت ورځې اخلاص وکــړي نو د حکمــت چینې به یــې د زړه څخه پــر ژبه باندې جاري شــي.

ابــو ســلیمان دارانــي رحمه اللــه ویلي: انســان چې کلــه اخــلاص وکړي نو وسوســې او ریاء ورڅخــه لیــرې کېږي.

هــروي رحمــه اللــه ویلــي : اخــلاص دا دی چــې تــه خپــل عمــل د هرعیب او نفســي غوښتنې څخه پاک وســاتې:

لکه د خلکو پــه زړونو کې د محبوبیت پیدا کېدلو غوښتنه. دا چې خلک یې ستاینه وکړي او بد یې و نــه وایي، خلک یې



تعظیم او احتــرام وکړي، د خلکو څخه د مال غوښتنه لري، د خلکو څخه د خدمت او محبت غوښتــنه لري او داسې نــور هغه منفي شــیان چې د عمل کولو پــه وخت کې د نفــس پــه واســطه د انسان ذهن ته راځي.

صدق او صداقت دا دی چــې په کار کې د خپل نفــس هېڅ لحــاظ ونه ســاتې. مخلــص ریــاء نه لري او صــادق تکبر نــه لري. اخــلاص په صدق باندې پوره کېږي او صدق په اخلاص باندې او دواړه بیا په صبر باندې. ریاء دا ده چې د انســان ظاهره تر باطن ښایسته وي. صدق په اخلاص کې دا دی چې باطن د انســان تر ظاهر آباد او ودان وي. څوک چې د خلکو لپاره ځان په داسې شــیانو باندې ښایسته کوي چې هغه په ده کې نه وي نو د الله پاک د اعتبار څخه به ولوېږي.

د اخلاص ګټې:

۱ - اخــلاص د اعمالــو او اقوالو پــه قبلېدلو کې پایه او اســاس دی.

۲ - اخلاص د دعاء د قبلېدلو لپاره پایه او اساس دی.

۳ - پر اخلاص باندې د انسان مرتبه په دنیا او آخرت کې لوړېږي.

۴ - پر اخلاص باندې انســان د وسوســو او وهمونو څخه ســاتل کېږي.

۵ - پــر اخــلاص بانــدې بنــده د غیــر اللــه د بندګــی څخه آزادېږي.

۶ - پــر اخلاص باندې ټولنیز ارتباطــات قوي کېږي او د الله پاک نصرت د امت په برخه کېږي.

۷ - پر اخلاص باندې دنیوي سختۍ آسانه کېږي.

۸ - پــر اخلاص بانــدې د انســان زړه ته اطمینــان راځي او دی احساس د خوشالۍ او نیکمرغۍ کوي.

۹ - پــر اخــلاص باندې د انســان ایمان قوي کېــږي او د ګناه او سرکښۍ څخه یې په زړه کې نفرت پیدا کېږي.

۱۰ - پر اخلاص باندې د مصیبتونو په مقابل کې د انســان اراده او عزم قوي کېږي.

۱۱ - پر اخلاص باندې انســان په دنیا او آخــرت کې پوره امن او لارښونه لاسته راوړلای سي.

منبع: طریقة لخدمة الدین

# اشغال؛ فکري جګړه او وارداتي ارزښتونه

نجیب‌الله جهادوال - اتمه برخه

### رولا غني او د مسـيحيت او فيمنيزم ترويج

په افغانسـتان کې له امريکايي اشـغال سره سـم کابو څلور زره غربي مؤسسـې افغانسـتان ته راغلې چې نيمايي يې په کليسـاګانو پورې اړونـدې وې او د امريکا پلـوي نظام تر سـيوري لاندې يې په بېـلا بېلو نومونـو فعاليتونه پيل کړل. دغه مهال د افغانسـتان په تاريخ کې په لومړي ځل په کابل، مزارشريف، کندهار، کندز، خوسـت، هرات او ځينې نورو ولايتونو کې د امريکايانو په اډو او مرکزونو کې کليسـاګانې هم جوړې شوې.

پلان دا و، چې د وخت په تېريدو سـره د بيـان او عقيدې د آزادۍ حق څخه په اسـتفادې چې د ١٣٨٢کال په اساسـي قانون کې هم تسـجيل شـوی وو، د ډيموکراسۍ تر سيوري لاندې مسـيحيت ته مرتد شـوي افغانان هم پـه آزاده توګه خپل عبادتونه پهکې وکړي چې له شـرايطو سـره سـم به بيا دغه مرتد شـوی اقليت د مسـيحي غرب تـر پالنې او ملاتړ لاندې سياسـت او پارلمان تـه هم لاره پيدا کـوي او کرار کرار به له خپـل پارلماني حق څخه په اسـتفادې په قانوني بڼه په افغانسـتان کې عيسويت رسمي کوي چې د پنجشېري عبدالرحمـن په ښـکاره نصرانـي کېدل او پـه تاريخ کې د لومړنـی افغاني نصرانی په توګه د اشـرف غنـي د نصرانی ښـځې (رولا) ثبت د همدې کار يو ډول پيلامه وه.

صليبيانو د مېرمنو له لارې په اسـلامي نړۍ کې د نفوذ کولو په برخه کې ښـه تجربه درلوده، د اسلامي نړۍ مشهور داعي شـيخ احمد ديدات د معلوماتو پر بنسـټ د اسلامي نړۍ يو شـمېر مشـرانو چې مېرمنې يې عيسـويانې وې، له عقيدتي اړخه خپلو ټولنـو ته نه جبرانېدونکـي زيانونه واړول، لکه د اندونيزيا د ولسمشـر سـوهارتو، د مصر د دوو ولسمشـرانو حسني مبارک او انور سادات او د اردن پاچا حسني د نصراني مېرمنـو پايله وه چې نن ورځ دغـه هېوادونه چې د نفوس له اړخه اکثريت مسـلمانان دي، خو واک يې د عيسـويانو په لاس دی، اسـلام يوازې د شـعار په بڼه پاتې دی، قوانين يې ټول غير شـرعي دي، حتی هغو مؤسسـو ته د فعاليت اجازه نه‌ورکول کېږي چې په نوم کې يې « اسـلامي» کلمه راځي.

دغه مشـران چې کله غـرب ته لاړل هلته پـرې له يوې خوا شـهوت غلبه وکړه او بلې خوا عيسوۍ ښـځې پرېمانه وې، نـو په دې توګه د هغوی په دام کې يې ګير شـول. د نومړي په باور اندلس يا اوسنۍ هسـپانيې هم هغه مهال سقوط وکړ چې کله مسـلمانانو له عيسيوي مېرمنو سره ودونه وکړل.

له همدې امله غربي اشـغالګرو په افغانسـتان کې همدغه تجربه وکاروله او واک يې د داسې کسانو په لاس ورکړ چې د ځينو مېرمنې يې عيسـويانې وې لکه د حکومت مشر محمد اشـرف غني، د ملي امنيت سـلاکار او د بهرنيو چارو وزير حنيف اتمر، د ملي امنيت سـلاکار ډاکټـر حمدالله محب، د ولسـي جرګې غړی قيوم کرزی، د اساسي قانون پرتطبيق د څارنې خپلواک کمېسـيون مشر ډاکټر قاسم هاشمزی او ...

که څه هم د رولاغني مسـيحيت له چـا څخه پټ نه و، خو محمد اشـرف غني د خپلو ټاکنيزو سـياليو پر مهال د هغې نوم «بي بي ګل غني» ته واړاوو او د ٢٠١٤کال ټاکنيزو سيالو پـر مهال يې د لويې جرګـې خيمه کې يـو کمپايني غونډې ته د قـرآن د يو آيت په تلاوت سـره دا وښـوده چې ګواکي مسـلمانه شوې ده. له دې سره هم‌مهاله د هغوی پلويانو هغه د قرآن حافظه ګڼله، چې ګواکې د اشـرف غني په هلو ځلو له عيسـويت څخه اسـلام ته راګرځېدلې او دې ته يې د غني د يو بل کمال او لاسـته راوړنې په سـترګه کتل، خو واک ته له رسېدو وروسته هرڅه پخواني حالت ته وګرځېدل.

مېرمن رولاغني يو مهال له سـي بي ايس ټلوېزيون سـره په مرکه کې وويل چې خاوند يې ډاکټر اشرف غني تل د عبادت لپاره ورسـره کليسـا ته ته او هلته يې عبـادت کاوو. د هغې پـه وينا، مېړه يې ديندراه نه دی او تر اسـلام عيسـويت ډېر خوښوي .

رولا همدارنګه له بي بي سـي/ انګليسي سره په يوه مرکه کې هـم وويل:« ټول د يو خدای عبادت کوو، خو هر کس يې په خپـل طرز او طريقه باندې کـوي» او په دې يې اعتراف وکړ چې اوس هم نصرانۍ او پر تثليث يـا درېيو خدايانو معتقده ده .

مېرمـن غني د تعصب او افراطيت تر حده د نصرانيت پيروې وه، پـه ډېرو تبشـيري (عيسـويت ته د تبليغ) مؤسسـو کې يې غړيتوب درلود او د همدغو مؤسسـو لـه لارې يې خپل تبشيري پلانونه پلي کول.

نومـوړې هغه مهـال د خلکـو غبرګونونو راوپـارول چې د ١٣٩٥کال پـه لومړيو کې يې د افغان مېرمنو په اسـتازيتوب پـه غربي جامـو کې د «کارنـز مونټانافورم» په نـوم نړيوال کنفرانس کې ګډون وکړ.

همدارنګه په ١٣٩٦کال کې داسـې اوازې هم خپرې شـوې چې اشـرف غنـي د خپلې مېرمنـې رولاغني لپـاره د پنځه ميليونه ډالرو په لګښـت پـه ارګ کې کليسـا جوړوي چې د رغاونې تړون يې له يو لبناني شـرکت سـره شـوی، خو د موضوع له افشـاء کېدو وروسـته ښـاغلي غنـي د موضوع حساسيت ته په پام سره په دغه کوچنۍ ودانۍ کې چې د ارګ دلکشاء مانۍ ترڅنګ په يوه ګوښه ځای کې جوړه شوې او د جومات لپاره مناسـب ځای نه‌ګڼل کېږي، د اختر لمونځ اداء کړ او خلکو ته يې دا وښـوده چې دا کليسا نه بلکې جومات دی خـو د ارګ ټولو کارکوونکو تـه معلومه ده چې د اختر له لمانځه وروسته بيا د نوموړي د واکمنۍ تر پايه په دغه ودانۍ کـې هېڅکله هـم چا لمونځ نـه‌کاوو. ځکه خو دا شـکونه زيات شـول چې دا جومات نه بلکې د بي بي ګلې کليسـاء وه.

محمد اشرف غني همدارنګه د ٢٠١٤کال د سپټمبر په ٢٩مه په ارګ کـې خپلې مېرمنې ته د « لومـړۍ مېرمن» په نوم او د « غوړ نيول، آسـانتيا او ملاتړ» په شعار سره دفتر هم جوړ کړ. ارګ ته د رولا په راتګ سـره د ښـځو په سياسـي موقف کې د پام وړ بدلون راغـی، د کورنيو او ملي دفاع وزارتونو تر معينيتونو او د ولايتونو د مرسـتيالانو په توګه د ښـځو ګمارنه يو ډول نوښـت وو چې د مېرمن غني فيمينسـتي سياسـتونو زېږنـده ګڼل کېده. هغې په ولايتونو، ولسـواليو او حتی کليو کې د ښځو لپاره شـبکې جوړې کړي چې زرګونو ښځو لپاره يـې فعاليتونه کول او په مسـتقيم او غيرمسـتقيم ډول يې يو زيات شمېر مېرمنې په ځان راټولې کړې.

د لومـړۍ مېرمنـې دفتر چې کلنـۍ بودجه يـې کابو څلور ميليونـه امريکايي ډالر وه او ٣٣ تنه کارکوونکي يې درلودل، يوازې د معاشـونو کلنی لګښـت يې کابو دوه ميليونه ډالرو ته رسـېده. هغه مهال دغه دفتر د دولتي سياسـتونو د جهت ورکولو په برخـه کې پر يو مهم ارګان بدل شـوی و او ډېرې ښځينه وزيرانې، سـفيرانې او رئيسانې په مستقيم ډول د دغه دفتـر له لارې ټاکل کيدې او په اصل کې يې له ښـځو چارو وزارت څخه ډېر صلاحيتونه درلودل.

مېرمـن غني حتی يو ځـل هغه مهال چـې د ٢٠٢٠کال په ډسـمبر کې ولسـي جرګې د افغانسـتان بانک سرپرسـت لبناني‌الاصلـه اجمل احمدي ته چې ويل کېدل د هغې وراره وو او د نومـوړې د ټيـم وزيرانو( رنګينه حميدي او حسـينا صافـي) ته د باور رأيـې ورنه‌کړې، پر دغـې جرګې د رأيو د پلـور او پير تور ولګاوو چـې د وکيلانو تونـد غبرګونونه يې هم راوپارول.

که څه هم رولا غني ځان د ښـځو مدافـع ګڼله، خو په ارګ او د چارو اداري لوی رياسـت کې د جنسـي ناوړه استفادې تورونو پر وړاندې چوپه خوله پاتې شـوه او هېڅکله يې هم د دغې شرموونکې موضوع په اړه غږ پورته نه‌کړ.

همدارنګه د بي بي ګلې په راتګ سـره په ارګ او چارو ادارې لوی رياسـت کې د بې‌حجابه او فاحشـو ښـځو د مقررۍ پروسـه چې د کرزي د دفتر لوی رئيـس کريم خرم له‌خوا د ځينو حساسـيتونو له امله ځنډول شـوې وه، ګړندۍ شوه او په کمه موده کې په سـلګونو مېرمنې په لوړو بستونو وګمارل شوې چې وروسـته يې د اخلاقي فسـاد کيسې هم رسنيزې شوې .

نور بيا...



# طبیعتی که نیاز به همکاری جهانی دارد

ضربی

مهمتریـن معضلی که امـروزه موجودات زنده به ویژه انسـان هـا را در تنگناه قرار داده ، بحران محیط زیسـت و افزایش نیاز های طبیعی از محیط وتوقعات انسـان از آن است، همه ی این موجودات در قدم نخست، نیازمند محیط سالم وایمنی هستند کـه بتوانند در آن بـه حیات خود ادامه دهند، حال آنکه رشـد صنعت وتوسعه ی جوامع مدرن عملاً به تخریب محیط زیست منجر شـده اسـت که اگر به حل این معضـل جهانی پرداخته نشود، آن روز دور نخواهد بود که حیات در روی زمین خود را در برابر حوادث خشنی از طبیعت خواهند یافت که بدون شک این همه بی مهری محصـول تلاش چندین دهه ی دولت های صنعتی در آسـیب زدن بر طبیعت ونابود سـازی آن می باشد، ازجمله خطرزا ترین مصادیق بحران زیسـت محیطی تخریب لایه ی اوزون ،تغییر اقلیم وگرمایش زمین است.

هرچند افغانستان در بحران محیط زیستی ، گرمایش زمین ولایه ی اوزون ، نقشی ندارد، اما از زیان های ناشی از بحران محیط زیسـتی وتغییراقلیم و...کشور ما نیز بی بهره نمانده ، خسارات مضاعفی را متحمل شـده است که می شـود از خشک سالی سال های پسین ، طوفان های بی موقع و افزایش حرارت به ویژه در تابسـتان ها یاد آور شد، درحالیکه کشور عزیز ما افغانستان دارای هوای معتدل و حتی قسـمت های شرقی کشور نیز هوای گـرم، اما مرطوب دارد کـه این ویژگی افغانسـتان از کوه‌های سـربه فلک کشـیده ودریا های خروشان این سـرزمین مایه می گیرد.

بنابـر این حالا که در آغاز فصل آمد،آمـد بهار قرار داریم باید نخست با یک طرح جامع وسراسری در صدد مدیریت آب های کشور که سرمایه ملی است، شویم وبعد در راستای احداث باغ ها، ساحات سـبز و رشد جنگلات توجه جدی به خرج دهیم، هرچند که پرداختن به این سازکار ها زمان و هزینه‌ی گزافی می خواهد ،اما در این راستای کنوانسـیون های جهانی هم وجود دارد که باید کشور های تازه از جنگ بیرون شده را کمک ویاری رسانند، زیرا امنیت زیست محیط جهانی در گرو براندازی بنیان های نظری ورفتاری سیاست جهانی است ودراین میان سازمان ملـل متحد نیز بـه نمایندگی از سیسـتم بیـن المللی مدرن، اقداماتی را در زمینه ی گاهش حرارت وتخریب بیشـتر لایه ی اوزون انجام داده است، اما به پیمانه تهدید های معاصر وفزونی نگرانی ها به نظر می رسد که ساز کار های این سازمان پیرامون بحران محیط زیسـتی، چندان موفق نبوده است وگرنه امروز ما درسـطح جهانی شاهد سرازیر شدن سیلاب ها، جنگل سوزی ها، طوفان ها، تعییر اقلیم وگرمایش زمین نمی بودیم.

بنابر این جامعه جهانی به ویژه سـازمان ملل متحد وسـازمان غیردولتی مدافع محیط زیست(صلح سبز) باید افغانستان را که طبیعت زیبا و کوه های با ظرفیت بلند پیرامون رشـد جنگلات دارد، یاری رسـانند، زیرا شرایط کنونی کشـور برای بهسازی وبازسـازی تمام عرصه ها به ویژه احـداث باغ ها، جنگلات، ساحات سبز ، بند های آب و.... مساعد است.

# ماه بهار و نزول قرآن کریم

منور مظهری

ماه رمضان، ماهی اسـت که در آن رحمت و برکات الهی به وفور نازل می‌شود. این ماه جایگاه ویژه‌ای در دین اسلام دارد و از جمله مهم‌ترین ویژگی‌های آن، نزول قرآن کریم است.

اهل سـنت معتقداند که قرآن کریم در شب قدر، که یکی از شب‌های رمضان است، از لوح محفوظ به آسمان دنیا نازل شد و سپس به‌تدریج بر پیامبر اسـلام (صلی‌الله علیه وسلم) وحی گردید. ازاین‌رو، این ماه نه‌تنها زمان روزه‌داری، بلکه ماه عبادت، ذکر، دعا و تدبر در کلام الهی است.

ماه رمضان: فرصتی برای تقوا و نزدیکی به خداوند(ج)

روزه یکی از ارکان پنج‌گانه اسـلام اسـت و بر هر مسلمانی که توانایی دارد، واجب است.

روزه، فرصتی برای تزکیه نفس و تقویت تقوا است.

روزه گرفتن، انسـان را به تقوا و پرهیزگاری نزدیک‌تر می‌کند. مسلمان روزه‌دار با پرهیز از خوردن، آشامیدن و سایر چیزهایی که روزه را باطل می‌کند، اراده خود را تقویت کرده و به خداوند تقرب می‌یابد.

### سه دهه رمضان: رحمت، مغفرت و نجات از آتش دوزخ

اهل سـنت معتقد اند که ماه رمضان به سه بخش تقسیم می‌شود و هر بخش آن دارای ویژگی خاصی است:

### ۱- دهه اول: دهه رحمت

ده روز نخسـت رمضان، روزهایی است که درهای رحمت الهی برای بندگان گشوده می‌شود.

در این دهه، مؤمنان با دعا، ذکـر و تلاوت قرآن، رحمت الهی را برای خود جذب می‌کنند.

### ۲- دهه دوم: دهه مغفرت

دهه دوم رمضان، زمانی برای طلب بخشش و مغفرت از گناهان است. خداونـد متعال در این روزها به بندگان خود فرصت می‌دهد که با توبه صادقانه و استغفار، گذشته خود را اصلاح کنند. پیامبر (ص) فرمودند: «مَن صامَ رَمَضانَ إیمانًا واحتسـابًا غُفِرَ لَهُ مـا تَقَدَّمَ مِن ذَنبِهِ» (بخاری و مسلم).

این حدیث نشـان می‌دهد که اگر فردی با ایمان و اخلاص روزه بگیرد، خداوند تمام گناهان گذشته او را می‌بخشد.

### ۳- دهه سوم: نجات از آتش دوزخ

آخرین دهه رمضان، مهم‌ترین بخش این ماه است، زیرا در آن شب قدر قرار دارد. در این شب، تقدیر یک‌ساله بندگان نوشته می‌شود و دعاها به اجابت نزدیک‌تر هستند.

در این دهه، مسـلمانان بیشتر به عبادت، اعتکاف و تلاوت قرآن کریم می‌پردازند و از خداوند درخواست آزادی از آتش دوزخ می‌کنند.

### فضیلت صدقه دادن در رمضان

یکـی از مهم‌ترین اعمالی کـه در این ماه تأکید شـده، صدقه دادن و کمک به نیازمندان اسـت. پیامبر اکرم (ص) خود در ماه رمضان بسیار سخاوتمند بودند. صدقه دادن در این ماه، اجر و ثواب بیشتری دارد.

اگر فردی به روزه‌داری افطـار دهد، ثواب روزه او را بدون اینکه از اجر خود روزه‌دار کم شود، دریافت خواهد کرد.

### نتیجه‌گیری

ماه رمضـان، فرصتی بی‌نظیر بـرای عبادت، خودسـازی و تقرب به خداوند(ج) اسـت. این ماه، زمـان نزول قرآن کریـم و ماه رحمت، مغفرت و نجات از آتش دوزخ اسـت. اهل سنت معتقد اند که در این ماه، روزه‌داری، نماز شـب، تلاوت قرآن، صدقـه دادن و دعا کردن از برترین اعمال هسـتند. همچنین، در دهه آخر رمضان، شب قدر قرار دارد که ارزش آن برتر از هزار ماه عبادت است.

ازاین‌رو، هر مسلمانی باید از این فرصت ارزشمند استفاده کند، روزه را با اخلاص و نیت پاک بگیرد، از گناهان دوری کند، به نیازمندان کمک کند و ارتباط خود را با خداوند(ج) قوی‌تر سـازد. بدون شک، کسانی کـه از این ماه به خوبی بهره ببرند، نه‌تنها در این دنیا بلکه در آخرت نیز پاداش عظیمی دریافت خواهند کرد.

## شهیدزار

**عبدالستارسعید**

دا د الا الله په ځوږ ودان که هر څو وران دی
زړه دی، ځان او تن مو دی، وطن افغانستان دی
دا د فطرت ناوې لا پر ځان وهي لاسونه
ږدي لا په تندي له پاکو وینو سره خالونه
رپي هره خوا په شهیدانو دسمالونه
سرو وینو راوړي لور د لوره سره ګلونه
شپه وي سپوږمۍ وایي له ځنګله سره رازونه
یخ شمال ته ښوري د نښترو اوربلونه
غرونه زبون وهلي وي ولاړ مغرور سرونه
شنو درو کې تم وي د غازیانو کاروانونه
توره شپه وي بل په شهیدانو مشالونه
ښکاري لا هم ځای ځای په اور غالو کې اورونه
سیند له مستۍ ناخي شنې څپې وهي تپونه
نوره خاموشي وي هره خوا خواره وزرونه
لاندې شهیدزار بر یې له ستورو ډک اسمان دی
زړه دی، ځان او تن مو دی، وطن افغانستان دی
زېرې د لمرخت وي په ختیځ افق سپېدې شي
شرنګ د تکبیرو شي آذانونه شي نعرې شي
زرکې په مستۍ شي د تنځرو غرغرې شي
شور وي ترنم وي سندریزې انګازې شي
ساه د ژوندون راوړي د سهار خوږې وږمې شي
وینښې له خیالي خوبه ستومانه پرګنې شي
مړه نغري تاوده شي د لوګیو سلسلې شي
ښکلې په سپین روبو جوماتونه شي ډېرې شي
کار د دین دنیا او د زلمو متې اوږې شي
پیغلې د پتمنو په ګودر خورې ورې شي
سپین سپېځلی ژوند شي تر اوبو رڼې شېبې شي
دلته تش یوه خدای ته پنځه وخته سجدې شي
دې ولس رودلی له شیدو سره ایمان دی
زړه دی، ځان او تن مو دی، وطن افغانستان دی
دا له تورو خاورو جوړ د سپینو واورو کور دی
خدایګو د فطرت د رنګینو عجیب انځور دی
هلته لړې پاځي په پردو بل شوی اور دی
دلته وږمې ناځي د لونګو لو او لور دی
هم بلخ او هرات دی د فاني مردانو ګور دی
هم د عزم ځلی کندهار، غزنی که غور دی
دې زانګو روزلی د محمود په شانې سپور دی
دې خاورې زوکړی د رومي د شپېلۍ شور دی
دا چې هر جابر ورته له قهره شین او تور دی
خدایګو ور په غاړه د بلا سرونو پور دی
دلته اوبه شوی د چنګېز د مړوند زور دی
دلته د یونان، مسکو، لندن ستوری نسکور دی
غشی د تقدیر د لاس ویاړلی خراسان دی
زړه دی، ځان او تن مو دی، وطن افغانستان دی
دلته چې راغلي د هغو برخې سپېرې دي
دلته له پردو ککرو جوړې منارې دي
دلته په بیدارو زلمو ښکلې سردرې دي
دلته له ویدو غازیانو ډکې هدیرې دي
سترګې د شېر بربتو له جلاله تکې سرې دي
تورې د نیکونو یې لا ځل وهي تېرې دي
دا د ایمان کور دی دلته ښلې ننداري دي
تندې د زړو ماتې د قرآن له فوارې دي
دلته په هر چم کې جوماتونه دي حجرې دي
دلته د کوچنیانو په لاسو کې سیپارې دي
دلته کور په کور د الله هو نعرې خورې دي
میندې دي، دعاوې دي، پلوونه دي، اسرې دي
هرې مور غازي بچی اېستلی تر قرآن دی
زړه دی، ځان او تن مو دی، وطن افغانستان دی
زړه دی د اسیا لا خو غورځنګ وهي درزېږي
چا وېل چې شېبې د ځنکدن یې رالنډېږي
لا یې په هڅو کې ایماني اروا چلېږي
لا خو یې رګونه د آمو، هلمند بهېږي
سپین واورین پامیر یې لا له قهره را نړېږي
لا یې هم له رعبه د دنیا زړګی لړزېږي
هر څه به میراث شي دلته ننګ نه میراتېږي
وینې د زلمو تل تویېدو ته هوسېږي
شته ملالۍ شته لا د میوند تپې غړېږي
لا هم له ټیکریو نه توغونه ترل کیږي
چا ته ټیټې مه شه لا د ننګ شملې رپېږي
لا هم د سعید د پګړۍ سپین ولونه ځلېږي
ځار ترې ایماني هیبت یې پروت په ټول جهان دی
زړه دی، ځان او تن مو دی، وطن افغانستان دی

# منار جام در معرض حوادث ناگوار

**نوری**

منار جام یکی از شاهکارهای دوران غوریان است که با قدمت طولا نی اش توجه گردشگران رابه خود جلب کرده است. این منار در معرض حوادث ناگوار و سیلاب ها از حالت اولی خود منحرف شده و در خطر سقوط قرار گرفته بود. حکومت های گذشته به بازسازی این منار اعتنا نه کرد؛ اما با استقرار امارت اسلامی توجه مسئولین وزارت اطلاعات و فرهنگ را جلب کرد. این منار در منطقه کم نظیر است و شکوهمندی دوران زمامداری غوریان را نشان میدهد. مولوی عبدالحی زعیم رئیس اطلاعات و فرهنگ غور، به رسانه ها گفته که« روند استحکام منار جام به منظور حفاظت بیشتر از آسیب سیلاب های موسمی، آغاز شده است». وی افزوده که« این پروژه شامل احداث دیوار گابیونی به درازای۲۶۷ متر، پهنای یک و نیم متر و بلندی یک متر است که به هزینه دو میلیون و۲۴۰ هزار افغانی، حمایت مالی موسسه انکشاف جامعه آسیا، در هماهنگی با وزارت اطلاعات و فرهنگ طی حدود دوماه ساخته خواهد شد». «منهاج سراج» مشهور به «جوزجانی» که بیشتر عمر خود را در شبه‌قاره هند گذراند، از مؤرخین دربار غوریان بود. کتاب ارزشمند «طبقات ناصری»، از او به یادگار مانده است. پایتخت غوریان، «فیروزکوه»، منطقه‌ای دشوار گذر و کوهستانی بود. در ورودی پایتخت غوریان، منار خشتی واقع شده است که به «منار جام» معروف است. این منار با داشتن زینه های داخلی و پر خم و پیچ، در ۶۲ کیلومتری منطقه «شهرک» در روستای موسوم به «جام»، واقع شده است. موقعیت منار جام، به گونه‌ای است که رودخانه جام از کنار آن عبور می‌کند و اندکی بعد از جنوب به شمال، به رودخانه خروشان «هریرود» می‌پیوندد. ارتفاع منار جام، ۶۳ متر است که پس از «منار قطب» در هند با ۷۳ متر، دومین منار بلند خشتی جهان محسوب می‌شود. منار جام در حدود سال‌های ۵۹۰هجری قمری در زمان شهاب‌الدین غوری ساخته شده است.

می‌توان حدس زد که این منار نماد هنر، شکوه و عظمت خراسان و سلاطین غوری باشد. این منار هشت ضلعی که با کاشی‌های فیروزه‌ای آراسته شده، مزین به آیاتی از سوره مریم و سایر متون دینی است. منار جام، به خاطر میراث جهانی، شاهکار تاریخی و نمای زیبا، در جون ۲۰۰۲ میلادی توسط سازمان آموزش، علمی و فرهنگی یونسکو در فهرست میراث فرهنگی جهان قرار گرفت. خطر فرسایش و فروپاشی منار جام، همواره از ناخوشنودی و تشویش های جامعه فرهنگی افغانستان محسوب می‌شد. به گفته مردم محل «این منار، دو درجه به سمت رودخانه، انحنا پیدا کرده و کج شده است»؛ اما اخیراً انحنای آن بیشتر شده و جاری شدن سیلاب‌های اخیر، خطر فروریزی آن را بیش از هر زمان دیگری افزایش داده است. سقوط منار جام نه تنها سرشکستگی بزرگ برای حکومت و سازمان یونسکو خواهد بود. جای مسرت است که وزارت اطلاعات و فرهنگ به همکاری موسسات همکار، کار بازسازی منار جام را راه اندازی کرده و قرار است که طی دوماه بازسازی شود. با بازسازی این منار تاریخ دوران غوریان درخشان تر از پیش خواهد شد؛ زیرا شاهکارهای هنری گذشتگان بازگو کننده تاریخ یک کشور می باشد.



# شعر کې د سجعې ارزښت

**عبدالعزیز**

د سجعې لغوي معنا او تعریف په قاموسونو کې تقریباً ثابت دی، چې د قمري او کوترې په اواز ترې تعبیر کېږي او اصطلاحاً د کلمو او فقرو له وروستیو هماهنګیو بحث کوي. په دې معنا چې تسجیع د جملو پهٔ اواخرو کې راځي او د جملو او فقرو پهٔ اهنګینولو کې کومک کوي.

استاد بېنوا یې پهٔ ادبي فنون نومې کتاب کې داسې راپېژني:« اسجاع د سجعې جمع ده او سجع د قمري، موزون او مقفا اهنګ ته وایي.»(۱:۹۴)

اوس بهٔ د سجعې ډولونه له مثالو سره معرفي کړو. سجع عموماً پهٔ درې ډوله ده. متوازي، متوازنه او مطرفه.

یو؛ متوازي سجع: پهٔ دې ډول سجع کې مسجع کلمات هموزنه او همقافیه وي او یا پهٔ اصطلاح د عینې غږونو، څپو او روي لرونکي وي. بېلګو ته یې ځیر شئ.

(مه کوه پهٔ چا، چې و بهٔ شي پهٔ تا)

پهٔ پورته منظوم متل کې متوازي سجع راغلې؛ ځکه چې د چا او تا کلمې یې هموزنه اوهمقافیه دي او یا پهٔ اصطلاح د چا او تا کلمې د عینې وزن، عینې غږونو(تورو) او عینی روي لرونکی دی. پهٔ نومړو کلمو کې (الف) د روي توری دی. بل مثال:

پهٔ خولهٔ خوږ، پهٔ زړهٔ کوږ

پهٔ پورته مثال کې د خوږ او کوږ پهٔ کلمو کې متوازي سجع راغلې. د خوږ او کوږ کلمې هموزنه او همقافیه دي. (ږ) توری یې روي او (و) یې ردف دی او قافیه یې مردفه او مقیده ده. د دري لوی عارف شاعر خواجه عبدالله انصاري پهٔ یو حکایت کې وایي» عارف را از انکار ِمنکر چه باک؟ نه دریا به دهان سگ پلید شود، و نه سگ به هفت دریا پاک.» (۲:۱۶)

پهٔ ذکر شوې مسجع جمله کې د باک او پاک کلمې لهٔ درې غږونو، یو سېلاب او مساوي روي رغیدلي. د (ک) توری یې روي او الف یې ردف دی. یا پهٔ دغه بیت کې د مست، پست او هست کلمې.

در عشق تو، گه مست و گهی پست شوم/ و زیاد تو، گه نیست، گهی هست شوم (۲:۱۵۰)

دوه؛ متوازنه سجع

پهٔ دې ډول سجع کې کلمې د وزن لهٔ مخې یو شان؛ خو د روي له مخې اختلاف لري. دا مثالونه یې ولولئ.

(خان، خان دی؛ خو پهٔ خوله خام دی)

د خان او خام کلمې سره متوازنه سجعه جوړې او دا ځکه چې یو ډول وزن لري؛ خو پهٔ روي کې متغایر دي (ن او م روي کېدای نه شي)

یا د ملا عطايي د یو غزل دا مطلع:

"شیخ یې ځاري د پلهٔ نښې ما یې کور لیدلی دی/ دهٔ کتلی د عشق تور دی ما یې زور لیدلی دی» (۳:۳۱)

او یا د خان هوس تر عنوان لاندې یې د شعر دا ټوټه: « د کلي خوا کې/ د کلا ځنګ ته/ ارت میدان کې/ ګڼه غوغا ده» (۳:۱۷۶)

په اول بیت کې د شیخ او عشق کلمو او پهٔ بل شعر کې د کلي او کلا کلمو متوازنه سجع جوړه کړې، چې څلور واړه کلمې دوه په دوه هموزنه خو مختلف القافیه دي.

درې؛ مطرفه سجع

که مسجع کلمات پهٔ روي کې یو، معنا همقافیه وي؛ خو هموزنه نه وي مطرفه سجع سازوي.

مثالونه یې: خپل عمل د لارې مل دی.

پهٔ دې متل کې د عمل او مل کلمو مطرفه سجع جوړه کړې؛ ځکه چې دواړه کلمې همقافیه، خو مختلف الوزنه دي. د عمل کلمه دوه څپې او مل کلمه بیا یوه څپه لري.

او یا د مرحوم پسرلي دا بیت:

پای یې شرافت شر او آفت ګرځي/ خوشې که بشر نه کړي د شر لمن

پهٔ دې بیت کې هم د بشر او شر کلمو مطرفه سجعه جوړه کړې.

او یا دا بیت:

مانند منصور» اناالحق» ګویان/ در هر ِکنجی، هزار سرَ بر سرِ دار( ۲:۱۷۱)

ولې سجع؟

پوهاند حبیبي پهٔ خپل مستند او مطرح اثر د پښتو ادبیاتو تاریخ کې لیکي:

"یو کلام او یوه وینا کهٔ نظم وي او کهٔ نثر، تل دوې برخې لرې او لهٔ دوې عنصرو څخه جوړېږي، چې یو لفظ او بل یې معنا ده.»( ۴:۷۱)

قریب د ټولو ژبو آغاز طبیعي شوی، لومړني انسانان د الفاظو پهٔ سینګار پسې نه ګرځېدل؛ بلکې خپل مافی الضمیر او مقاصد بهٔ یې پهٔ ساده توګه وړاندې کول. خو کله چې ژبې لیک او د رسم الخط چوکاټ ته ولوېدې؛ نو لیکوالو هم د الفاظو پهٔ تراشلو او تزیین کولو لاس پورې کړ او معاني یې د الفاظو تابع کړې. عربو د جاهلیت پهٔ دور او د اسلام په اوایلو کې ساده او طبیعي نثر درلود. خو پهٔ دویمه هجري پېړۍ کې چې عرب لیکوال د نورو ژبو او ملتونو سره بلد شول، نو د هغوی پهٔ فني او مصنوع نثر روږدې او دا ویاله یې خپلې ژبې ته هم وویسته. عربو خپله لار کج او نثر یې پهٔ حاشیو اومترادفاتو ککړ کړ. لهٔ عربي متاثرو ژبو دري او پښتو ته هم دا صنعت راننوت. پهٔ فارسي کې ستر عارف شاعر خواجه عبدالله انصاري پهٔ هروي لهجه پرېمانه مناجات او حکایات ولیکل. پهٔ پښتو کې یې بنیادګر بیا بایزید روښان دی، چې خپل کمیاب کتاب خیرالبیان یې هم پر مسجع نثر وکېښ. خو یوه بله خبره هم د یادون وړ ده. هغه دا چې دده پیروانو او نورو روښانیانو خپل روایتونه او رسالې پهٔ سلیس او روان نثر لیکلي، نهٔ پهٔ مسجع نثر. سرمحقق هیوادمل یې علت دا شی بولي» پهٔ روښانیانو کې چې چا پهٔ پښتو نثرونه لیکلي دي د هغو د نثر شېوه لهٔ خیرالبیانه بېله ده. دا چې روښانیانو ولې پهٔ نثر نګارۍ کې د خیرالبیان شېوه نه ده تعقیب کړې زما پهٔ پوهه روښانیانو دا باور درلود چې خیرالبیان یو الهامي کتاب دی، ښایي د درناوي او د خیرالبیان د سبک د اصالت د خوندي ساتلو پهٔ منظور یې دا سبک نه وي تعقیب کړی.»( ۵:۱۷۶)

د سجعې ارزښت خصوصا پهٔ شعر کې

پهٔ دې برخه کې بهٔ اول د مطرحو لیکوالو نظرونه د سجع او قافیې د ترادف او مغایرت، موقیعت او موافقت پهٔ اساس راواخلم. لهٔ اروابښاد تقویم الحق کاکاخېل، حنیف خلیل د سبک پهٔ باب پوښتنه کړې وه؛ نو دوی یې ځواب کې ویلي و، چې: « نثر مسجع د شعر ابتدا ده. یعنې شعر چې نثر ته راشي نثر مسجع شي. "(۶:۱۷۲)

دی یې پهٔ دلیل کې د بایزید دا بیت چې بار بار پهٔ خیرالبیان کې راځي، راوړي. مرګ بهٔ ورشي و سړي و ته ناګهان/ نشته د سړي پهٔ دنیا کې تل د تله مقام

استاد روهي پهٔ خپل شعرپوهنې نومې اثر کې زیاتوي: « پښتنو لیکوالو سجع د قافیې پهٔ معنا راخیستې ده؛ نو ځکه یې مسجع نثر قافیه وال نثر بللی دی. کهٔ څهٔ هم متوازي سجع د جوړښت لهٔ مخې لهٔ قافیې سره فرق نه لري، خو کله چې دغه ډول سجع پهٔ ناموزونه وینا کې راشي قافیه نه بلل کیږي. « (۷:۶۲) ډاکټر درمل پهٔ خپل ارزښتمن اثر شعرستان کې دا بحث د کتاب پهٔ اواخرو کې راوړي. دی وایي: « د سجعې بحث د کلماتو لهٔ هموزنۍ او همغږیزوالي سره اړیکه لري؛ لهٔ قافیې سره د سجعې توپیر دادی چې قافیه پهٔ شعر کې همیشه تر ردیف وړاندې راځي د بیت وروستۍ کلمې وي؛ خو سجع یوازې په شعر کې او بیت پورې نه ده منحصره؛ بلکې پهٔ نثرونو کې هم پراخ استعمال لري.» (۸:۵۱۹)

د سجعې لهٔ ارزښته سترګې نه شي پټېدای. اساسي وظیفه یې پهٔ شعر کې داخلي موسیقي پهٔ غورځنګ راوستل، د کلام چستول او شعر موج وهلو ته اړ کول دي. د سجعې اول ډول(متوازي سجع) د شعر د موسیقۍ پهٔ برخه کې پراخ نقش لري؛ ځکه دا سجع کټ مټ قافیه ده، چې خاص اغېز کوي. دویم ډول( مطرفه) هم لهٔ متوازي کمه نه ده. دلته هم کلمې همقافیه، خو مختلف الوزن دي؛ خو رول یې بارز دی. ددې سجعې یوه خوا سپکه وي، مانا پهٔ یوه پښه ګوډه ده. د شعر په جوش او خروش کې پوره ونډه لري او درېیم ډول(متوازنه) یې بیا الفاظ موزونوي، خو همقافیه نه وي.

یوه خبره باید یاده شي، چې هره موزونه کلمه د متوازنې سجعې په ورشو نه شي ورګډېدای؛ بلکې راغلي توري به له یوه کالهٔ وي. معنا متوازنې سجعې کې بویه، چې تورې هممخرج او یا نږدې مخرجه وي ترڅو موسیقي تولید کړي. ددې ادعا د ثبوت لپاره چې سجع ریښتیا دومره موثره ده؟ د محترمې شاعرې آمنه فنا د غزل دا بیتونه انتخابوم او تاسو یې هم ولولئ.

... ۷مخ

# د اسلامي امارت اقتصادي پالیسي د شرعي اصولو او عادلانه تګلارې پر اساس ولاړه ده

محمد عزام

اسلامي امارت خپل اقتصادي نظام د شریعت پر اصولو بنا کړی، چې اساسي موخه یې د اقتصادي عدالت، ټولنیز ثبات او عادلانه توزیع یقیني کول دي. د اسلامي اقتصاد اساس د قرآن، سنت، اجماع، او قیاس له مخې وضع شوی او اسلامي امارت د همدې اصولو پر بنسټ خپل مالي سیاستونه عیار کړي، چې د سود، احتکار، اقتصادي استثمار او مالي بې عدالتۍ مخه ونیول شي. د اسلام اقتصادي نظام د عدالت او برابرۍ اصل ته ژمن دی، چې موخه یې د ټولنې د ټولو افرادو لپاره متوازن اقتصادي فرصتونه برابرول دي. اسلامي امارت د همدې اصولو پر بنیاد، د شریعت مطابق اقتصادي نظام ته وده ورکوي، چې په هغه کې به استثمار او د ټولنې د شتمنیو ناسم وېش ته ځای نه وي. دا پالیسي د اسلامي خلافتونو د مالي سیاستونو تسلسل دی، چېرې چې د بیت المال نظام، د زکات، عشر، جزیه، او خراج له لارې اقتصادي توازن ساتل شوی و.

الله تعالی فرمایي: ژباړه: دا آیت د اسلامي اقتصاد د مهم اصل، یعنې د زکات، صدقات او ټولنیزې همکارۍ پر اهمیت ټینګار کوي. د زکات نظام د اسلامي اقتصادي سیاست یوه اساسي ستنه ده، چې د شتمنو له مالونو څخه یوه برخه اخلي او د بې وزلو، مسکینانو او اړمنو خلکو اړتیاوې پوره کوي. اسلامي امارت د زکات د راټولولو او د شریعت مطابق د وېش نظام ته ځانګړې پاملرنه کړې، څو دا مالي فریضه د ټولنیز عدالت لپاره کارنده وګرځي. امام قرطبي (رحمه الله) وایي: "الزكاة سبب في نماء المال وتطهير النفس من الشح" (تفسیر قرطبي: ٢٢٨/٣)، یعنې "زکات د مال د برکت او د بخل د له منځه وړلو سبب دی."

د حلالې سوداګرۍ او عادلانه اقتصادي سیستم د رامنځته کولو لپاره، اسلامي شریعت د سود، احتکار او درغلیو مخنیوی کړی. الله تعالی فرمایي: ژباړه: یعنې "الله تجارت حلال کړی او سود یې حرام کړی." دا آیت ښکاره بیانوي چې اقتصاد باید د حلالو معاملو پر اساس وي، نه د استثماري سودي سیستم پر اساس. د سودي اقتصادي سیستم په نتیجه کې ټولنیزه نا برابري زیاتېږي، ځکه چې شتمن نور هم شتمن کېږي او بې‌وزله نور هم بې‌وزله پاتې کېږي. د همدې لپاره، اسلامي شریعت د داسې اقتصادي نظام ترویج ته د خلکو هڅونه کوي چې په هغه کې ګټه د عادلانه سوداګرۍ، پانګونې او کار له لارې تر لاسه شي، نه د استثمار او بې‌عدالتیو له لارې. امام ابن تیمیه (رحمه‌الله) وایي: "الربا من أعظم الظلم، وهو محرم في جميع الشرائع" (مجموع الفتاوی: ۴۷۱/۲۹)، یعنې "سود له ټولو لوی ظلم دی او دا د ټولو آسماني شریعتونو له نظره حرام دی."

د احتکار، درغلۍ او مصنوعي قحط د مخنیوي لپاره، رسول الله ﷺ فرمایي: "لَا يَحْتَكِرُ إِلَّا خَاطِئٌ" (مسلم: ١٦٠۵)، یعنې "احتکار کوونکی ګناهکار دی." د اسلامي امارت اقتصادي سیاست د بازار د آزادۍ اصول مراعتوي، خو داسې مقررات وضع کوي چې د بازار استحکام وساتي، د درغلۍ مخه ونیسي او د سوداګرو تر منځ عادلانه رقابت ایجاد کړي. د اسلامي اقتصاد له نظره، بازار باید د عادلانه قوانینو تابع وي، چې په کې مصنوعي کمښت، بیې لوړېدل او د توکو احتکار منع وي. امام النووي (رحمه‌الله) وایي: "الاحتكار حرام إذا أضر بالناس" (شرح صحیح مسلم: ۴۳/۱۱)، یعنې "احتکار حرام دی که خلکو ته ضرر ورسوي." د همدې اصل مطابق، اسلامي امارت د مصنوعي قحط او نرخ لوړولو د مخنیوي لپاره لازم اقدامات کوي، څو ټولنه د احتکار له ضرر څخه وژغورل شي.

د دولتي عوایدو او مصرف لپاره، شریعت د بیت المال د مدیریت واضح اصول ټاکلي، تر څو عامه شتمنۍ په عادلانه، شفاف او مسؤلانه ډول اداره شي او د ملت حقوق خوندي پاتې شي. د رسول الله ﷺ دا مبارک حدیث، چې فرمایي: "مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ عَلَى عَمَلٍ فَرَزَقْنَاهُ رِزْقًا فَمَا أَخَذَ بَعْدَ ذَلِكَ فَهُوَ غُلُولٌ" (ابو داود: ٢٩۴٣)، د اسلامي دولت د مالي چارو لپاره یو اساسي اصل ټاکي، یعنې هر هغه څوک چې د دولتي دندې لپاره ټاکل شوی وي او ورته د دولت له بودیجې څخه تنخواه ورکول کېږي، که له دې نه زیات څه اخلي، دا خیانت ګڼل کېږي. د دې حدیث مفهوم دا دی چې دولتي چارواکي او مسؤلین حق نه لري چې د ملت له شتمنۍ څخه شخصي ګټه پورته کړي، بلکې دا شتمني د ټول امت امانت دی، چې باید د عامه مصلحت لپاره وکارول شي. د همدې اصولو پر بنسټ، اسلامي امارت هم د دولتي بودیجې د شفافیت، د عامه شتمنیو د ساتنې او د دولتي فساد د مخنیوي لپاره لازم اصول وضع کړي، تر څو د شریعت مطابق عواید را ټول شي، په سمه توګه مصرف شي او د ملت حقوق ضایع نه شي. د اسلامي شریعت له نظره، د عامه شتمنیو اداره باید یوازې د ټول ملت د مصلحت مطابق وي، نه د اشخاصو د شخصي ګټې لپاره، ځکه چې د دولت مال یوازې د حکومت یا چارواکو ملکیت نه، بلکې د ټول امت امانت دی، چې پر اساس یې باید بیت المال مدیریت شي. همدا وجه ده چې اسلامي فقهاء د دولتي عوایدو په مصرف کې د عدالت، امانت، شفافیت او عامه مصلحت اصول مهم ګڼي او دا حکم ورکوي چې هر ډول خیانت یا شخصي استفاده ترې ناروا ده. امام ابن القیم رحمه‌الله دا موضوع په خورا ښکلي او واضحه ډول بیان کړې، چیرې چې وایي: "تصرف الإمام في الأموال مبني على المصلحة العامة، لا على الهوى والتفضيل" (أعلام الموقعین: ٣٩٣/۴)، یعنې د حاکم تصرف په دولتي عوایدو کې باید یوازې د عامه مصلحت پر بنسټ وي، نه د شخصي خوښې یا امتیاز ورکولو پر اساس. دا اصل د دې لپاره ټاکل شوی چې د حکومت چارواکي د ملت د مال په مصرف کې هېڅ ډول خپلسري ونه کړي، د خلکو پر مال زیاتی ونه کړي او دا شتمني د ولس د سوکالۍ، عامه خدمتونو، امنیت، عدالت، تعلیم او فقر له منځه وړلو لپاره وکارول شي. د اسلامي تاریخ تجربې ښیي چې کله د بیت المال اصول مراعات شوي، ملت ته یې ستري ګټې رسولې دي او حکومتونه یې قوي ساتلي دي. د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت پر مهال، د بیت المال شفافیت داسې و چې آن د دولت امیران به هم د بیت المال له پیسو څخه شخصي استفاده نشوای کولی. یو ځل چې د حضرت عمر رضي الله عنه زوی د بیت المال له شتمنۍ نه یو اضافي څیز واخیست، نو هغه ته یې امر وکړ چې دا بېرته بیت المال ته وسپاري. همداراز، کله چې حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه‌الله خلافت ته ورسېد، نو یې د بیت المال نه یوازې د عامه خلکو، بلکې د حیواناتو لپاره هم خدمت ته وقف کړ او د عدل او امانت له برکته یې د فقر له منځه وړلو حد ته ورسېد، آن تر دې چې زکات اخیستونکي پیدا نشول. دا ټولې تجربې دا ښیي چې د اسلامي دولت د عوایدو اداره باید د عدالت، مساوات، شفافیت او عامه مصلحت پر بنسټ وشي او د شخصي ګټې، فساد او غیر قانوني تصرفاتو مخه ونیول شي، ځکه چې د بیت المال ساتنه د ټول ملت د سوکالۍ او د دولت د ثبات لپاره خورا اړینه موضوع ده.

اسلام د اقتصادي ودې لپاره کار، تولید او پانګونه ضروري ګڼلې او د زحمت له لارې د روزۍ ګټل یې غوره بللي. رسول الله ﷺ فرمایي: "ما أكل أحد طعامًا قط خيرًا من أن يأكل من عمل يده" (بخاري: ٢٠٧٢)، یعنې "له ټولو غوره خواړه هغه دي چې انسان یې د خپل لاس له زحمت څخه تر لاسه کړي." دا حدیث د اقتصادي خپلواکۍ او د انسان د شخصي هڅو ارزښت څرګندوي. د اسلامي اقتصاد اصل دا دی چې اقتصادي فعالیتونه باید د عادلانه کار او حلالې مزدورۍ پر بنسټ وي، نه د استثمار، سود، احتکار او استعماري سوداګریو پر بنسټ، ځکه چې اسلام د تولیدي اقتصاد طرفدار دی، نه د هغه اقتصاد چې یوازې د مالي سیستم له لارې بډایه خلک لا بډایه کوي او فقیران لا فقیرانوي. له همدې امله، اسلامي امارت د تولید، کرنې، صنعت او سوداګرۍ د ودې لپاره هڅې کوي، تر څو اقتصاد پیاوړی شي او خلک د شرعي لارو د عایداتو فرصتونه ترلاسه کړي. اسلامي اقتصاد دا اصول ټاکي چې هر اقتصادي فعالیت باید د ټولنې د سوکالۍ، عادلانه توزیع او ټولنیز عدالت سبب شي، ځکه چې شریعت نه یوازې اقتصادي وده غواړي، بلکې د شتمنۍ عادلانه وېش ته هم ژمن دی، څو ټولنه د اقتصادي بې‌عدالتۍ او استثمار څخه وساتل شي.

د اسلامي امارت اقتصادي پالیسي د شریعت پر دې اصولو ولاړه ده چې اقتصاد باید عادلانه وي، د سود، احتکار او فریب مخنیوی وشي، دولتي عواید د عامه مصلحت لپاره ولګول شي، سوداګري او پانګونه د اسلامي اصولو مطابق تنظیم شي او اقتصادي ثبات تأمین شي. دا پالیسۍ د اسلامي امارت د مالي نظام هغه اساسي بنسټونه دي چې د اسلامي اقتصادي نظام د اصلي اصولو سره سمون لري، او د شریعت پر بنیاد اقتصادي پالیسي عملي کوي.




# توصیه‌های سلف صالحین، در مورد روزه

حسان مجاهد



١_ ابن ابی‌دنیا (رح): کسی که در ماه رمضان روزه بگیرد و در همان سال وفات کند، به بهشت داخل خواهد شد. (فضایل رمضان لابن أبی‌دنیا، ص ٢٨)

٢_ امام شوکانی (رح): واژه «رمضان» از «رمض» گرفته شده است که به معنای سوختن است. رمضان را ازاین‌رو رمضان می‌نامند که گناهان را می‌سوزاند. (فتح القدیر، ١٨٥/١)

٣_ عمر بن خطاب (رض): روزه فقط پرهیز از خوردن و نوشیدن نیست، بلکه باید از باطل، دروغ و امور بیهوده نیز پرهیز کرد. (المحلی لابن حزم، ٣٠٨/٤)

٤_ ابن جوزی (رح): قسم به خدا! اگر از اهل قبرها بپرسید که چه آرزویی دارند؟ بی‌شک آرزوی یک روز از رمضان را خواهند کرد.

٥_ امام زهری (رح): گفتن یک تسبیح در رمضان، بهتر از هزار تسبیح در ماه‌های دیگر است. (موسوعۀ ابن أبی‌دنیا، ٤٦٨/١)

٦_ ابن رجب (رح): مؤمن در رمضان دو جهاد با نفس خود دارد: روزه در روز و تراویح در شب. کسی که این دو جهاد را با حقوق کاملش انجام دهد و صبر کند، پاداش بی‌حساب خواهد یافت. (لطائف المعارف، ص ١٧١)

٧_ ابن قیم (رح): برترین روزه‌داران کسانی هستند که ذکر خداوند (ج) را زیاد می‌گویند. (الوابل الصیب، ص ١٥٣)

٨_ ابن رجب (رح): باوجود اسباب گسترده مغفرت در رمضان، اگر کسی بی‌بخشش بماند، نهایت بدبختی است. (لطائف المعارف)

٩_ ابن أبی شیبه (رح): جمعه، سرور همه روزها است و رمضان، سرور همه ماه‌ها. (مصنف ابن أبی شیبۀ، ٥٥٥٢)

١٠_ ابن عمر (رض): در هنگام افطار، دعای هر مؤمنی پذیرفته می‌شود؛ یا در دنیا و یا برای آخرت ذخیره خواهد شد. (البیهقی فی شعب الإیمان، ٣٦٢٠)

١١_ حافظ ابن رجب (رح): کسی که در رمضان منفعتی نبرد، پس چه زمانی می‌خواهد بهره ببرد؟! (لطائف المعارف، ص ٢٨١)

١٢_ معتمر بن سلیمان (رح): پدرم در رمضان تمام اعضای خانواده را بیدار می‌کرد و می‌گفت: «برخیزید! شاید بعد از این سال دیگر این ماه را نیابید!» (موسوعۀ ابن أبی‌دنیا، ٧٣/٢)

١٣_ ابوبکر مروزی (رح): بشر (رح) می‌گفت: «گرسنگی، قلب را پاک می‌کند، شهوات را می‌کُشد و دانش عمیق را به انسان عطا می‌کند.» (سیر أعلام النبلاء، ٤٧١/١٠)

١٤_ ابن قیم (رح): کسی که رمضان را در صحت و سلامتی بگذراند، تمام سال را همان‌گونه خواهد بود. (زاد المعاد، ٣٩٨/١)

١٥_ امام ذهبی (رح): نزد مؤمنان ثابت‌شده که کسی که بدون عذر روزه رمضان را نگیرد، از زناکار و شراب‌خوار بدتر است، بلکه برخی مؤمنان در اسلام او شک کرده‌اند و او را زندیق پنداشته‌اند. (الکبائر)

١٦_ ابن کثیر (رح): دعا در هر زمان مستحب است، اما در رمضان، بیشتر دعا کردن توصیه شده است، و در دهه آخر رمضان، حتی بیشتر از آن، و در شب‌های طاق از همه بیشتر مستحب است. (تفسیر ابن کثیر، ٤٥١/٨)

١٧_ ابن رجب (رح): برخی از سلف در روز عید فطر غمگین بودند. وقتی از آن‌ها پرسیده می‌شد: «این روز شادی است، چرا غمگینید؟» می‌گفتند: «درست است! اما نمی‌دانم که آیا عمل روزه ما نزد پروردگار قبول شده است یا نه؟!» (لطائف المعارف)

١٨_ ابن جوزی (رح): شایسته است که در دهه آخر رمضان تلاش در عبادت بیشتر شود؛ یکی به دلیل فضیلت این شب‌ها و دیگری به‌خاطر وداع با رمضان، چراکه معلوم نیست که بار دیگر چنین ماهی را درک کند یا نه. (التبصرۀ، ٤٩٣/٢)

١٩_ ابن کثیر (رح): برخی روزه را با پرهیز از خوردن و نوشیدن نگه می‌دارند، اما هنگام افطار با خوردن گوشت برادر مسلمان خود - یعنی غیبت - روزه خود را می‌شکنند. (الحلیۀ لأبی نعیم، ٦٩/٣)

٢٠_ قرطبی (رح): بسته شدن شیاطین در رمضان، به این معنی نیست که هیچ گناهی صورت نخواهد گرفت؛ زیرا عوامل دیگری نیز برای گناه وجود دارد، مانند: نفس اماره، عادات ناپسند، و شیاطین انسانی. (فتح الباری، ١١٤/٤)

٢١_ احنف بن قیس (رح): به او گفتند: «تو پیر شده‌ای، روزه بدنت را ضعیف می‌کند!» او پاسخ داد: «من خود را برای سفری طولانی آماده می‌کنم. صبر بر عبادت خدا، آسان‌تر از صبر بر عذاب اوست.» (الطبقات الکبری، ٩٦/٧)

# سیکولاریسم و الحادیزم دو روی یک سکه اند

**محمد مجاهد**

دشمنان اسلام سعی می‌کنند که اذهان مسلمانان را به طرف سکولاریسم جلب کنند، در حالی که این پروسه، پروسه‌ای است یقیناً بر ضدّ دین نجات بخش اسلام و مسئله‌ای است که با ارزش‌ها و مفاهیم متون دینی ما مسلمانان به طور کامل ناسازگار است.
مبنی بنادین اختلاف میان مؤمن و سکولار دستورالعمل و قانون حاکم بر زندگی جمعی مسلمانان که همانا قرآن کریم است می باشد، سکولارها میگویند موضوع و مسئله دین تنها در قلمرو حوزه شخصی انسان است و بس. برای روشن شدن عنوان فوق الذکر تمهیداً به چهار مورد که ظهور پدیده ای افیونی سکولاریسم دربر می‌گیرد می پردازیم:
۱-عملکرد متولیان دستگاه کلیسا؛
۲- محتویات ساختگی در متون اناجیل کنونی متعدد در جامعه عیسویت؛
۳- شیفتگی برخی‌ها به دنیا بر اثر مشاهدات رشد صنعت و فن آوری؛
۴- تزریق مباحث علوم تجربی و نظری از سوی برخی درباره‌ی علوم وحیانی و جهان هستی.
لذا هر یک از مواد فوق به نوبه خود موجب تشدید تفکرات دین ستیزانه در انسان تربیت یافته غرب شده که سرانجام منجرّ به حذف دین از متن جامعه و اجتماع مغرب زمین شد و دین تابع سلیقه، ذوق و احساس شخصی مردم تلقی گردید. شایان ذکر است که این فرایند، در دنیای اسلام جایگاه ندارد و در آموزه‌های دینی به این نوع نگرش خط بطلان کشیده شده است. زیرا نوع نگرش اسلام به انسان با توجه به متون دین اسلام و نوع زندگی اجتماعی بشر در جامعه اسلامی متفاوت است و ضمناً مفاهیم اسلامی و دستورات دینی تنها به امور فردی و شخصی اختصاص ندارد، بلکه موضوعات اجتماعی را نیز شامل می‌شود. هر چند نشأت سکولاریسم از غرب بوده اما اندیشه تفکیک دین از سیاست در جوامع اسلامی نیز تبلیغات شده؛ لذا عادلانه نخواهد بود که سکولاریسم را فقط منحصر در جوامع غربی نماییم. چنانچه در این محدوده ای جغرافیایی یعنی افغانستان جدایی دین از سیاست توسط امان الله خان تئوری ریزی شد و وی نخستین شخصی بود، که به صورت علنی ساز حکومت بدون اتکا به دین را سر داد و همه قدرت، توان و انرژی خود را در زنده نگه داشتن بنیاد حکومت لائیکی به کار بست. به علاوه آنکه، اندیشه عدم دخالت دین در حوزه سیاست با نظریه حذف دین پیوسته تباین نداشته، بلکه هر دو اختلاف شدید یک حقیقت به نام روح مادی گرایی که گاهی در مفهوم تفکیک دین و سیاست، تبلور می‌کند و زمانی هم در معنای طرد دین و غیر عُقلای خواندن متافیزیک (ماوراءالطبیعه) بروز دارد. لذا واژه ملحد و بی دین معادله ای جامع تر و به مقصود و مفهوم سکولاریست نزدیکتر و محق تر می باشد.
پس لازمی است که چگونگی نگرش دین مقدس اسلام را با جامعه مورد مداقه قرار دهیم تا ثابت شود، که زمینه بروز و ظهور سکولاریسم با توجه چنین نگرشهایی امکان‌پذیر نیست، زیرا نگرش دین مقدس اسلام به جامعه محتوای معرفتی دارد.
اساساً در جوامع واقعاً اسلامی، نه تنها هیچ بستری برای ظهور اندیشه سکولاریستی یافت نمی‌شود بلکه چنین فکرِ دقیقاً منطقی نیست. وقتی دین مقدس اسلام به هر پدیده‌ای کوچک و بزرگ اشاره می‌کند تمام ابعاد آنرا مورد ملاحظه قرار میدهد، هم به جهات مادی و دنیوی و هم به جهات معنوی و اخروی.
روشن است که چنین نگرشی، هم به‌راحتی دفاع شدنی است و هم در متن جامعه کارایی دارد. مسئله ارتباط دین و سیاست را می توان در متن دین اسلام به وضوح دریافت، زیرا یکی از مباحثی پر اهمیت در اسلام، مبحث سیاست اسلامی است. مباحثی مانند ضرورت تشکیل نظام، دولت، حکومت، روابط بین الملل، شورا و مشورت و مفاهیم اساسی سیاسی دیگر مانند جهاد، در یک تشکیلات منظم سیاسی و اجتماعی و اقتصادی از جمله ضروریات حاکمیت اسلامی پنداشته می‌شود و چندین مرتبه در متن قانون شریعت اسلامی تذکر یافته است. حاصل سخن اینکه سکولاریسم با عقل نقّاد انسانی در جامعه اسلامی کارایی ندارد و لازم است، که از آموزه‌های پایدار دین مقدس اسلام درمقابل توطئه‌های سکولاریسم حمایت و دفاع صورت گیرد. دین اسلام ضمن توجه به ابعاد معنوی جامعه از جنبه مادی نیز غافل نبوده است. با مطالعه تاریخ در خواهیم یافت که سرگذشت بزرگان دینی و زندگی آنها حاکی از این است که نسبت به امور مادی و دنیوی خود به طور کلی بی‌توجه نبوده‌اند. اسلام با دخالت کردن در فعالیت های اجتماعی، از راه‌های گوناگون، بر طرز تفکر سکولاریستی خط بطلان می‌کشد. اسلام انسان را در متن جامعه قرار میدهد و کمال او را هم با حضور در جامعه قابل تحقق می‌داند و حاشیه‌نشینی و بی‌طرفی را به‌شدت نفی می‌کند. شاهد بر این مدعا آن است که وقتی به آموزه‌های این دین می‌نگریم بُعد اجتماعی آن را بهتر از بُعد فردی آن مشاهده می‌کنیم. فلهذا از دیدگاه دین اسلام قدرتِ و نظامِ می‌تواند بر جامعه حاکمیت کند، که در فرایند آموزه‌های دینی به وجود می آید. استمرار رسالت توسط علمای امت لزوم داشتن نظام، حکومت و قدرت اجرایی اسلامی را بر می‌تابد، زیرا مصادیق اوامر و نواهی الهی، فقط در امور فردی خلاصه نمی‌شود، بلکه جلوه‌های آن در امور اجتماعی نیز قابل رؤیت است. چنانچه تأمل در برخی از احکام شرع نسبت به مناسبات اجتماعی جامعه، روشن می شود که اکثر اوامر و نواهی شرع، بدون حاکمیت اسلامی تحقق نمی‌یابد؛ مانند جهاد، تنظیم اردو، اقامه حدود، قصاص، امر به معروف و نهی عن المنکر، تنظیم روابط بین‌الملل بر اساس حسن تفاهم، روابط حسنه با همسایگان، زندگی مسالمت‌آمیز و نفی هرگونه ظلم، استبداد، استکبار و سلطه‌گری طاغوتی و سلطه‌پذیری و غیره. فلهذا چون دین اسلام در پی پیاده کردن نظام مبتنی بر معارف وحیانی است، هرگز نظام، حاکمیت و دولتِ که غیر متکی بر معارف قرآنی باشد را نمی‌پذیرد و بر امت اسلامی واجب است، که با فراهم کردن بستر مناسب برایند نظام توأم و تلفیق شده با دساتیر اسلامی را تحقق بخشیده پاسداری نمایند. زیرا نبی اکرم(ص) نخستین بنیانگذار حکومت اسلامی بودند، آن حضرت تمام مسایلی را که یک حکومت در آن زمان اعمال می‌کرد، انجام می‌دادند. با توجه به آموزه‌ها و جامعه‌شناسی اسلامی درخواهیم یافت که مسئله حکومت به صورت جمع یک شی مربوط به دنیا نیست که دیانت در رابطه به آن دخالتی نداشته باشد. زیرا دیانت اسلامی هم در حوزه شخصی انسان بحث می‌کند و هم حوزه اجتماعی انسان را در بر می‌گیرد و ناظر به آن قلمرو است. فلهذا تفکیک دین از سیاست از منظر اسلام نوعی ظلم و اجحاف در حق این دین وحیانی و مقدس محسوب می‌گردد که با آموزه های ارزشمند ما مسلمانان مخالف است. مسلمانان آگاه حکومت لائیک را نمی‌پذیرند چون اندیشه سکولاریستی به طور اساسی با آموزشهای دین اسلام تضاد دارد و طبق قاعده منطقی که اجتماع نقضین از محالات است، سکولاریستی و لائیکی را نمی توان با مفاهیم وارزشهای اسلامی را در آمیخت و سکولار ها نباید در کشورهای اسلامی حاکمیت داشته‌باشند.

## افغان اعلانات

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تأسی از فقره (۲) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، د افغانستان برشنا شرکت در نظر دارد تا قرارداد پروژه اعمار تحویلخانه کابل برشنا ( برشنا کوت) تحت شماره داوطلبی برشنا شرکت/١٤٤٦/داوطلبی باز ملی/ ساختمان/٠١٦ را با شرکت ساختمانی عبدالبشیر احمدزی دارنده جواز نمبر ٦٥٣٤٩ با داشتن محل اصلی شرکت{ هوتل پروان گولایی سینما ناحیه ۱۱ مرکز کابل-افغانستان} به قیمت مجموعی مبلغ ۸,۸۰۰,۹۰۰ هشت میلیون و هشت صد هزار و نو صد افغانی اعطا نماید.
اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توام با دلایل آن به ریاست تدارکات دافغانستان برشنا شرکت - دهمزنگ - کابل افغانستان وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.
این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

***

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم عبدالقادر فرزند انور یک عراده موتر پلیت ۶۸۵۴۲- ل کابل نوع تیوتا کرولا بنز جرمنی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای بازمحمد فرزند حاجی ولی محمد بفروش رسانیده است.
بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند.
۹۶۲۲

***

### اعلان داوطلبی موازی (۱/۴۹۴۷) متر مربع کمپلکس ورزشی مربوط ناحیه (١٦) شهر کابل!

ریاست عمومی املاک دولتی وزارت مالیه موازی (١/ ٤٩٤٧) متر مربع احاطه شده بنام کمپلکس ورزشی که در آن چهار باب تعمیر یک منزله و دومنزله، سه باب اطاق خامه، چهار باب دوکان آیسکریم فروشی و یک حلقه چاه آب نیز میباشد واقع کابل نندارى مربوط ناحیه (١٦) شهر کابل را به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ (١٤٩٠٠٦) افغانی به شکل آفر سربسته به اعلان داوطلبی می سپارد، برایت مدت (٣) سال.
اشخاص حقیقی و حکمی که خواهان به کرایه گرفتن جایداد فوق را داشته ب اشند میتوانند درخواست های شان را بعد از تاریخ ١٦/ حوت /١٤٠٣ الی ٧/حمل/١٤٠٤ به ریاست عمومی املاک دولتی امارتی واقع منزل چهارم تعمیر ١٤ منزله سینمای پامیر تسلیم نموده شرطنامه را اخذ نمایند.
آدرس: سینما پامیر تعمیر ١٤ منزله، منزل ٥، مدیریت عمومی ارزیابی قرار دادهای مرکز.
شماره تماس: ٠٢٠٢٩٢٤٦٢٤ - ٠٢٠٢٩٢٤٦٠٧
مجلس داوطلبی تاریخ ٨ حمل ١٤٠٤ به ساعت ١٠:٠٠ قبل از ظهر برگزار میگردد.

## د سوداګرۍ لورې او څو ...

څو بېلګې يې وړاندې کوو: ترکمنستان نړۍ کې د طبيعي ګازو له اړخه څلورم بډايه هېواد دی او تل يې د خپلو ګازو د پلور پر مارکيټونو غور کړی. د دوی لپاره ښه، نږدې او اقتصادي لاره افغانستان دی. ددې هلو ځلو يو مثال ټاپي پروژه ده. تاجکستان د برېښنا توليد کې بسيا دی او غواړي چې د کاسازر او نورو پروژو له لارې برېښنا خرڅه کړي. ازبکستان هم زموږ غونډې په وچه کې ايسار دی او د صادراتو او وارداتو ښه سيال ورته افغانستان ښکاري. بايد هېره نه شي چې د افغانستان ځانبسياينه يوازې د حکومت نه، د ټولو هېوادوالو ګډه چاره ده. د فرد په توګه زه بايد د خپل بزګر د ورغوي تناکې او د هر بوټي بيخ ته د تويې شوې خولې ارزښت درک کړم او د پرديو او مضرو توليداتو پر ځای خپل ځان ته خير ورسوم. له طبيعت، ځنګل، اوبو او حتی د يوه تېرېدونکي الوتونکو په وړاندې هم بايد ځان مسوول وګڼم. د پښتو د متل په مصداق که وسله، غله مو ډېره وه او يوه ورځ له اقتصادي اړخه په پښو ولاړ وو؛ نو د نړۍ په هر ګز خاوره کې به د بل مسلمان ورور لاسنيوی کولی شو.

## د بيرغ د سم کارولو لپاره بايد ...

برم ترجماني کوي)).
د هغه په وينا، لازمه ده چې بيرغ په هغو ځايونو کې نصب او وکارول شي چې ساتنې، درناوي او تقدس ته يې پاملرنه او لاسرسی کيدلی شي.
هغه وويل، چې د دې لپاره د هېواد په کچه د پراخ عامه پوهاوي رامنځته کول په کار دي.
د غونډې په پای کې د غړو تر رغندو نظرونو اوربډلو وروسته يوې کاري کمېټې ته دنده وسپارل شوه، چې راتلونکې غونډې ته د بيرغ او کلمې طيبې د احترام، استعمال او پر بديلو لارو چارو باندې د غور لپاره مشخصه کمېټه وټاکي، څو راتلونکي مجلس کې پرې دقيق غور وشي او د وروستيو کړنو او منظورۍ لپاره مقام ته واستول شي.

**سميع الله مومند**

## هرات کې د موټرو نړيوال ترمينل ...

چارې ۳۵ سلنه مخکې تللي، چې تر څلورو راتلونکو مياشتو به ګټې اخيستو ته چمتو شي.ټاکل شوې ده، چې بشپړ کارونه به يې په دريېو فازونو کې د درې کلونو په موده کې سر ته ورسېږي او هرات به د سيمې پر مهم ټرانزيټي مرکز بدل کړي.د ښاغلي يوسف د معلوماتو پر بنسټ، له دغه ترمينله به د اوس لپاره يوازې د هرات دننه او د هېواد نورو ولايتونو ته تګ راتګ کېږي خو په نژدې راتلونکي کې به ترې د هرات-مشهد تر منځ د موټرو تګ راتګ هم پيل شي.د دغې پروژې تطبيقونکي انجنير فضل هادي وويل، چې دا ترمينل د ټولو نړيوالو نورمونو او ستندرډونو په نظر کې نيولو سره طرحه شوی، چې له بشپړېدو وروسته به د اړتيا وړ ټولې اسانتياوې ولري.نوموړي زياته کړه، چې دا رغنيزه پروژه نه يوازې د هرات لپاره، بلکې د ټول افغانستان په اقتصادي وده کې مهم رول لري.د دې لپاره، چې دغه ترمينل ته ورکړل شوې ځمکه د ټرانسپورټ وزارت ملکيت دی او پانګونه پرې د خصوصي سکتور له لوري کېږي، تر ۳۰ کلونو به يې يوازې ۳۰ سلنه عايد د حکومت خزانې ته او ۷۰ سلنه خصوصي پانګوالو ته ځي.اقتصادي کارپوهان دا پروژه د افغانستان د ټرانسپورټي راتلونکي او ښاري پراختيا لپاره يو مهم ګام بولي.د اقتصادي چارو کارپوه فرهاد الکوزی وايي، چې د دې ترمينل له جوړېدو وروسته نه يوازې د هرات، بلکې د ټول هېواد اقتصادي بنه بدلېدی شي، په خبره يې ځکه چې د سيمې د ټرانزيټي مرکز په توګه افغانستان ته د خلکو پام وراوړي.

**نذيرمنيب**

## د هېواد د لس سلنې ځنګلونو ...

خبر ورکړ او له هېوادوالو يې وغوښتل چې د ځان او هېواد لپاره نيالګي کېږدي.
ښاغلي عثماني زياته کړه، چې په ۳ کالو کې مو ۲۰ هکتاره ځمکه په ځنګل پوښلې ده: په درې کالو کې، په ۲۲ ولايتو کې چې مېوه لرونکي او غيرمېوه لرونکي ځنګلات لرو، تقريباً ۲۰ زره هکتاره ځمکه مو په ځنګلاتو جوړه کړې او برابره کړې او ۳ زره هکتاره په اور سوې ځمکه باندې مو نيالګي اېښودلي دي.
د چاپېريال ساتنې ملي ادارې سرپرست او د پاليسۍ او مسلکي چارو معين ذين العابدين عابد په دې اړه جوړې شوې غونډې ته وويل چې دا ځل د تېرکال په توپير سره دغه ملي کمپاين د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت، چاپېريال ساتنې ملي ادارې او کابل ښاروالۍ سره په ګډه پيل شوی دی. نوموړی وايي چې نيالګي نه يوازې دنيوي ګټې لري، بلکې صدقه جاريه هم ده. ښاغلي عابد له ښاروالۍ وغوښتل چې له هغه کسانو دې خساره واخلي، د کومو د لاسه چې نيالګي وچ شوي دي.
نوموړي زياتوي چې په يوه داسې طرحه کار کوي چې له مخې به يې په راتلونکي ۷ کالونو کې ۲ سوه ميليونه نيالګي کېښودل شي او د هېواد ۱۰ سلنه ځمکه به زرغونه شي.
د کابل ښاروالۍ د زرغونتيا رياست رئيس عبدالوکيل متوکل بيا وويل چې د کابل ښاروالۍ سږکال د يو ميليون نيالګيو اېښودلو پلان لري، چې ۶ لکه به اوس او ۴ لکه به د پسرلي تر وروستيو پورې کېږدي.
ښاغلي متوکل نيالګيو ته د اوبو ورکولو ترڅنګ ښاريانو ته هم د اوبو برابرولو وويل: د ټول کابل د ښار چې څومره سرسبزي ده، د دوی لپاره ۲۰ سلنه اوبه له ځمکې راوېستل کېږي، چې د ښاروال او معينانو د حکم پر اساس بايد ۵ سلنه ته راورسېږي او باقي نورې اوبه ښاروالي د ځمکې نه، بلکې له نورو لارو برابروي. نوموړي زياته کړه چې په روان(۱۴۰۳)کال کې يوازې څه کم ۵ زره ضايع نيالګي لرو او نورو ټولو وده کړې ده. افغانستان کې د يوناما د سياسي استازولۍ د سياسي برخې راغلي پلاوي وويل چې لسګونه کلونو جګړو د افغانستان چاپېريال اغېزمن کړی دی او ملګري ملتونه بايد د چاپېريال ساتنې ستونزه سياسي نه کړي او بايد ټول په ګډه مرسته وکړو.
افغان مسئولين وايي چې د دې ملي کمپاين ترڅنګ، دوی په داسې يوه طرحه هم کار کوي، تر ۱۴۱۰ کال پورې د ۲ سوه ميليونو نيالګيو په اېښودلو سره د افغانستان ۱۰ سلنه ځمکه زرغونه کړي.
نيالګي نه يوازې د چاپېريال ساتنې لپاره يو مهم ګام دی، بلکې د اقليمي بدلون، د هوا ککړتيا کمښت او د طبيعي منظرې ښايست ته هم وده ورکوي.

**تاج محمدبهار**

## ورود محموله ۲۰ تُن بوره از امارات ...

در خبرنامه آمده که رهبری مقام ولایت هرات متعهد به ایجاد تسهیلات لازم به تجار برای انتقال کالاهای تجارتی از طریق خطآهن است.
دفتر مطبوعاتی مقام ولایت هرات یک ویدیو ۳۳ ثانیه‌ای از جریان رسیدن این محموله خطآهن به این ولایت نیز نشر کرده است.

## شعر کې د سجعې ...

پهٔ ليمو کې مې انځور، پاس سپوږمۍ ستوري او لمر/ زړه مې بويه د رڼا او رنګونو سمندر
کيف کې ډوبه د قرآن، شمه ورکه له خپل ځان/ کهٔ وي سورة الرحمان، کهٔ وي سورة الكوثر
پهٔ حضور کې د مولا ټول وجود مې شي ګويا/ وايي الحمدالله وايي الله اکبر
دا ستا مينه ده اعجاز، حقيقت دی که مجاز/ راته ووايه دا راز، ته يې حال باندې خبر
زنګوي بهٔ مې ستا خيال، پهٔ رنګين د بودۍ ټال/ د باران مهين ډېوال زما او ستا په منځ کې غر
ژونده تهٔ لرې هرڅهٔ، هم خوارهٔ او هم تراخهٔ/ داغ دې راکړلو په زړهٔ، لکه ګل د پيغمبر
سرچينه د رنګينو د قدرت د کرشمو/ جنتي روح د وږمو د سپرلي زرغون څادر(۹:۲۹)
د پورته بحث خلاصه دا شوه، چې متوازي سجع هموزنه او همقافيه وي، متوازنه کې بيا کلام هموزنه؛ خو مختلف القافيه وي او مطرفه کې بيا سجع همقافيه، خو مختلف الوزنه وي.
پهٔ تېر کې غالبا استادانو او مرشدانو د خپلو پيروانو او طالبانو پهٔ خاطر کلامونه مسجع کول؛ تر څو متون پهٔ اسانه حفظ شي. بله خبره دا چې د شعر پهٔ ښکلا کې د سجعې برخه شته. سجع پهٔ شعر کې د زينو د پاړکو حيثيت لري. خو کهٔ طبيعي راشي نو شعر تر شاتو هم شيرينولی شي.

اخځونه


۱ـ بېنوا، عبدالرؤف، ادبي فنون(۱۳۸۲). دويم چاپ، کندهار: هيواد کولتوري ادبي ټولنه
۲ـ انصاري، عبدالله، رسائل جامع( ۱۳۸۸). ايران: خيام خپروندويه ټولنه
۳ـ عطايي، عبدالهادي، د وخت ضرب(۲۰۱۸). دويم چاپ، کراچۍ: ځلاند صحاف خپرندويه ټولنه.
۴ـ حبيبي، عبدالحی، د پښتو ادبياتو تاريخ لومړی او دوهم ټوک( ۱۳۹۷). کابل: دانش خپرونديه ټولنه.
۵ـ هيوادمل، زلمی، د پښتو نثر اته سوه کاله(۱۳۷۵). لاهور: ملت پرزنټرز
۶ـ مومند، قلندر، د خيرالبيان تنقيدي مطالعه( ۱۹۸۸). اول چاپ، پېښور.
۷ـ روهي، محمد صديق، شعرپوهنه( ۱۳۸۸). پېښور: ميهن خپرندويه ټولنه.
۸ـ درمل، احسان الله، شعرستان( ۱۳۹۷). دويم چاپ، کابل: سروش خپروندويه ټولنه.
۹ـ فنا، آمنه، د طوبی تر سيوري لاندې( ۱۳۹۸). اول چاپ، کابل: دانش خپرندويه ټولنه.

# شریعت

د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل ـ افغانستان
شماره توزیع و شکایات: ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

Shariat Daily

Thursday 06 March 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 700


د چاپېریال ساتنې ملي اداره:

## د هېواد د لس سلنې ځنګلونو د بیازرغونتیا طرحه چمتو ده




**شریعت:** په افغانستان کې د زرغون چاپېریال، پاکې هوا او ښایسته طبیعت د رامنځته کولو په موخه د نیالګیو اېښودلو ملي کمپاین پیل شو. د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت، کابل ښاروالي او د چاپېریال ساتنې ملي ادارو په ګډه د میلیونونو نیالګیو اېښودلو پلان لري. سږکال به یوازې د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت ۱۶ میلیونه، کابل ښاروالي یو میلیون او د چاپېریال ساتنې ملي اداره ۲.۲ میلیونه نیالګي کېږدي.
د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت مرستیال صدرعظم عثماني په یاده غونډه کې د هېواد په کچه له موسساتو سره په مرسته د ۱۶ میلیونه نیالګیو اېښودلو ... ۷ مخ

## د افغانستان او ایران ترمنځ پر ترانسپورټي همکاریو خبرې وشوې

د ټولګټو چارو وزارت سرپرست ملا محمد عیسی ثاني په کابل کې د ایران سفیر علي‌رضا بېکدلي سره کتلي دي.
په کابل کې د ایران سفارت ویلي، چې په دې غونډه کې د دواړو هېوادونو ترمنځ په ترانسپورټي همکاریو خبرې شوې دي.
د ویلو ده، چې د دواړو هېوادونو ترمنځ دا همکاري د اقتصادي اړیکو په پیاوړي کېدو کې یو مهم ګام ګڼل کېږي.

## ورود محموله ۲۰ تُن بوره از امارات متحده عربی به افغانستان از طریق خط آهن



در پی تسریع انتقال کالای‌های تجاری از طریق خط‌آهن به داخل و خارج از کشور، یک محموله حامل ۲۰ تُن شَکَر (بوره) از امارات متحده عربی به افغانستان وارد شده است.
به گفته دفتر مطبوعاتی مقام ولایت هرات، این محموله حامل ۶ واګُن سمنت از کشور ایران و ۲۰ واګن شَکَر از امارات متحده عربی است که از طریق خط‌آهن خواف-هرات، به این ولایت رسیده است. ص۷

## تالقان؛ د ګازو ټانکر کې پټ شوي تریاک ترلاسه شوي

د کورنیو چارو وزارت ویاند خبر ورکړی، چې تخار ولایت نشه یي توکو سره د مبارزې منسوبینو د پلټونکو عملیاتو پایله کې ۶ زره او ۲۹۹ کیلوګرامه تریاک نیولي دي.
د دې وزارت ویاند عبدالمتین قانع ویلي، چې دا تریاک د تخار مرکز تالقان د خطایان سیمې په مربوطاتو کې نیول شوي دي، چې د ګازو په یو ټانکر کې په مهارت ځای په ځای شوي وو.
نوموړي زیاته کړې، په دې تړاو دوه تنه نیول شوي دي، چې له لومړنیو څېړنو وروسته به عدلي او قضایي ارګانونو ته وسپارل شي.
د یادونې ده، چې د اسلامي امارت بیا حاکمیت را وروسته د نشه یي توکو کرکیلې او قاچاق پر وړاندې بې سارې جدي مبارزه پیل شوه، چې دمګړۍ هېواد کې د نشه یي توکو کرکیله، پیر او پلور تر ټولو ټیټې کچې ته رسېدلې دی.

## ډنمارک د افغانستان لپاره ځانګړي شوي بشري صندوق سره مرسته کړې

د افغانستان ځانګړي بشري صندوق ویلي، چې ډنمارک له دغه صندوق سره ۵۰ میلیون ډنمارکي کرون، چې ۶.۹ میلیونه امریکایي ډالر کېږي مرسته کړې ده.
یاد صندوق له ډنمارک څخه مننه کړې او زیاته کړې یې ده، چې د ډنمارک دوامداره ملاتړ د افغانانو، په ځانګړې توګه بېځایه شویو کسانو د پیاوړتیا لپاره اړین دی.
یاده دې شي چې پر ډنمارک سربېره جاپان، ناروې او نورو هېوادونو هم له دې صندوق سره خپله مرسته اعلان کړې وه.



## هلمند کې یو تن له نږدې څلور میلیونه کلدارو سره ونیول شو



د هلمند په مارجې ولسوالۍ کې د امنیتي ځواکونو له لوري یو تن د ۳ میلیونه او ۹ سوه زره پاکستانۍ کالدارو سره لاس په لاس د غلا په تور نیول شوی دی.
د هلمند د امنیه قوماندانۍ د رسنیو دفتر ویلي، چې دغه کس ۱۵ ورځې مخکې د خپل ماما له کوره ۴ میلیونه پاکستانۍ کالدارې غلا کړې وې، چې ونیول شو.
د یادې قوماندانۍ د مسوولینو په وینا، چې نیول شوې پیسې اصلي څښتن ته سپارل شوې او تورن کس به تر دوسیې بشپړولو وروسته اړوند عدلیې او قضایې ارګانونو ته ور وپېژندل شي.

## د ننګرهار ښاریانو ته د اوبو رسونې له لارې ۲۱ میلیونه افغانۍ ترلاسه شوې



د ننګرهار ولایت د ختیځ زون د ښاري اوبو رسولو او فاضلابو ریاست مسئولینو خبر ورکړی، چې د ۱۴۰۳ مالي کال په بهیرکې یې د جلال‌اباد ښار د پاکو اوبو رسولو له لارې ۲۱ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي. د یاد ریاست رییس د اطلاعاتو او کلتور ریاست له لوري د شفافیت او حساب ورکولو رسنیزې ناستې ته ویلي، چې د جلال‌اباد ښار په ۵ ناحیو کې ۱۰ زره کورنیو ته ۱۴۰ زره متره مکعب پاکې اوبه رسول شوې او له درکه یې ۲۱ میلیونه افغانۍ راټولې او د دولت خزانې ته سپارل شوې دي.




## د ویجاړې غزې بیاودانونه؛ طرحه یې چمتو او منل شوې



د مصر ولسمشر عبدالفتاح السیسي ویلي، چې د غزې د بیارغونې لپاره د دې هېواد طرحه د عربو مشرانو له لوري تصویب شوې ده. د الجزیرې د راپور له‌مخې، دا طرحه د عربو مشرانو په بېړنۍ غونډه کې د مصر په پلازمېنه قاهره کې جوړه شوې وه، چې په ټولیز ډول ومنل شوه. دغه طرحه درېو پړاوونو کې پلې کېږي، چې لومړی پړاو یې شپږ میاشتې په پر کې نیسي. دې لومړي پړاو کې به خاورې او لوټې شي، نیمه ویجاړ کورونه به بیاجوړ شي. دویم پړاو چې دوه کاله به دوام وکړي، د اوبو او برېښنا چمتو کول او د استوګنو د نویو خونو او ښارګوټو زیاتونه ده. دغه طرحه چې درې پړاوونه لري لومړی پړاو یې شپږ میاشتې دوام کوي، چې پکې د وېجاړیو پاکول، د موقتي کورونو جوړول او د نیمه‌ویجاړو کورونو بیارغونه شامل دي. دویم پړاو یې چې دوه کاله دوام کوي، بیا هم پکې د وېجاړیو پاکول، د اوبو او برېښنا شبکو جوړول او د نورو استوګنیزو واحدونو جوړول شامل دي. درېیمه مرحله یې، چې دوه‌نیم کاله دوام کوي، پکې د غزې د ټولو اوسېدونکو لپاره د کورونو جوړول، د صنعتي زون د لومړۍ فاز جوړول، د سوداګریزو بندرونو جوړول، د هوایي ډګر جوړول او نور عامه خدمتونه شامل دي. ټاکل شوې چې پر دې طرحې شاوخوا ۵۳ میلیارده ډالره اټکل شوې ده.

## ښایي زېلنسکي له ولسمشرۍ ګوښه شي

د اوکراین د اپوزیسیون غړي الکساندر دوبینسکي پرون دوشنبه ویلي چې هڅه کوي، اوسمهالی ولسمشر ولادیمیر زېلانسکي واک پرېښودو ته اړ باسي. دوبینسکي ویلي، پریکړه یې کړې چې د ولادیمیر زیلینسکي د استیضاح لپاره لایحه وړاندې کړي. د ولادیمیر زېلنسکي له واکه د غورځېدو ګواښونه وروسته له هغې ډېر شوي چې د نوموړي، ډونالډ ټرمپ او د ټرمپ د مرستیال یوه ناسته په لفظي شخړه واوښته. یاده دې شي چې ټرمپ دې ناسته کې نوموړی مخاطب کړی چې واک او ښه دریځ نه لري.

نخست‌وزیر کانادا:

## ترامپ با جنگ تجاری احمقانه بدنبال نابودی اقتصاد ما است

جاستین ترودو، نخست‌وزیر کانادا می‌گوید، دونالد ترامپ، رئیس جمهور امریکا با به راه انداختن جنگ تجاری «احمقانه» بدنبال نابودی اقتصاد کانادا است. نخست‌وزیر کانادا با نادرست و غیرموجه خواندن اقدامات دونالد ترامپ گفته که کشور و مردمش تسلیم سیاست‌های رییس جمهور امریکا نخواهند شد. او افزوده، هرچند که وضع تعرفه ۲۵ درصدی به بیکاری، افزایش تورم سبب شده و اقتصاد کانادا را ضربه خواهد زد، اما مردم این کشور برای دفاع از خود و کشور هر هزینه‌ای را خواهند پرداخت. ترودو در عین‌زمان از اجرایی کردن تعرفه مشابه ۲۵ درصدی به میلیاردها دالر کالاهای وارداتی از امریکا نیز خبر داده است. این گفته‌های تند نخست‌وزیر کانادا پس از آن بیان شده که رئیس جمهور امریکا از اجرایی شدن طرح تعرفه ۲۵ درصدی بر واردات این کشور خبر داد

